بسم اللہ الرحمن الرحیم

یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَیْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِیْمًا

اے ایمان والو درنګو! په خوږ نبي صلی الله علیه وسلم درود اوبته سلام اووایئ!

# فضائل درود شریف

مؤلفه


رأس المحدثین حضرت الحاج الحافظ مولانا زکریا صاحب مد ظله

شیخ الحدیث مظاهر علوم سهارنپور


په دیکښې د درود شریف فضائل او د نه ویلو سزا ګانې، آداب، مسائل او په روضه اقدس کښې د درود او سلام طریقه او پنځوس قصې دي

په پښتو کښې ترجمه کونکے


شیخ التفسیر مولانا حبیب الرحمن صاحب - دار التصنیف روستم - مردان



رستو السلام عام پریس پښاور

# فهرست مضامين

---

خوشنویس محمد شفیق د اسماعیله
تحصیل صوابی ضلع مردان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ ط حَامِدًا وَّمُصَلِّيًا وَّمُسَلِّمًا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ بِنِعْمَتِهٖ تَتِمُّ الصَّالِحَاتُ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِ الْمَوْجُوْدَاتِ الَّذِيْ قَالَ اَنَا سَيِّدُ وُلْدِ اٰدَمَ وَلَا فَخْرَ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَاَتْبَاعِهٖ اِلٰى يَوْمِ الْحَشْرِ. اَمَّا بَعْدُ.

مولانا صاحب دَ دے فضائل درود دَ لیکلو اسباب دَ ډیرو دوستانو خطوط او خاصکر دَ حضرت شاه محمد یٰسین صاحب نګینوی خلیفه دَ قطب عالم شیخ المشائخ حضرت ګنګوهی قدس سره دَ فرمان تعمیل لیکی. فضائل قرآن هم دَ دوی په فرمان مولانا لیکلے وو

دَ دے پوښو فصلونه دی. او یوه یے خاتمه ده. ړومبے فصل دَ درود شریف په فضائلو کښ دے. دویم فصل دَ خاصو درودونو فضائلو کښ دے دریم فصل دَ درود دَ نه ویلو په سزاګانو کښ دے. پنځم فصل په قصو کښ دے.

الله دِ ټولو خلقو ته دَ درود شریف دَ ویلو توفیق ورکړی. دَ دے رسالے په لوستو به خلقو ته معلومه شی. چه درود شریف ډیر لوئ دولت دے. او په درود شریف کښ کوتاهی کونکے دَ لوئے نیک بختئ نه بے برخے شی.

# اول فصل

دَ درود په فضائلو کښ دَ ټولو نه مخکښ دَ خدائے دَ پاک قرآن آیت دے.

(۱) اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا

بے شکه الله او دَ ده ملائکے په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم رحمت لیږی. اے ایماندارو تاسو هم په ده رحمت اولیږئ او سلام ورته اوکړئ

فائده:- په قرآن شریف کښ ډیر حکمونه راغلی دی. لکه مونځ، روژه، حج، وغیره او دَ ډیرو پیغمبرانو تعریفونه پکښی هم شوی دی. لکه آدم چه پیدا شه نو فرښتو ته حکم اوشه. چه ده ته سجده اوکړئ. خو خدائ

په هیڅ حکم یا دَچا په عزت کښی خان نه دے شریک کړے. چه کښے زه دا
کار کوم. نو تا سو یې هم اوکړئ. دا دَ شراکت عزت صرف دَ خوږ نبی صلی
الله علیه وسلم دَ پاره اوشه. چه زه په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم رحم کوم.
او حما ملائکے ورته هم دَ لویو مرتبو دعاګانے کوی. نو تا سو ورته دعاګانے
اوکړئ. نو دا دَ خوږ نبی علیه السلام لوئ عزت دے. چه دَ ده په معامله کښی
خدائ پاک فرښتے او مؤمنان ټول شریک دی.

په دے آیت کښی "اِنَّ" دَ ډیر زور دَ پاره دے. چه کوم سے دا کار ضرور
دَ کیدو دے. او بل په دے آیت کښی "یُصَلُّوْنَ" مضارع راغلیدے. چه دا دَ همیش
کیدو دَ پاره راځی. نو معلومه شوه چه په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په
دَ الله او دَ فرښتو رحمتونه همیشه وی. دا خبره علامه سخاویؒ هم لیکلے
ده. صاحب دَ روح البیان لیکی. چه دَ خدائ دَ طرف نه په خوږ نبی علیه
السلام دَ درود مطلب دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم مقام محمود ته رسول
دی. کوم چه دَ شفاعت مقام دے. او دَ ملائکو درود دَ دوی دَ خوږ نبی علیه
السّلام دَ پاره دَ مرتبو دَ زیاتوالی سوال دے. او دَ ده دَ امت دَ پاره بخنه
غوښته دی. او دَ مؤمنانو دَ درود مطلب دَ خوږ نبی علیه السّلام تابعداری
ده. دَ ده سره محبت دے. او دَ خوږ نبیؐ دَ صفاتو ذکر او تعریف دے. نو
تا سو اولیده. چه دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم عزتونه دَ آدم علیه
السلام دَ عزتونو نه ډیر زیات دی. ده ته خو صرف فرښتو سجده کړے
وه. او په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم خدائ پاک او فرښتے درود وائی
نحه لوړ عقل پوهیږی چه عزت دو مره ❊ نه چا بل دیندار او نه چا دو مره پیغمبر اولید

یُصَلِّیْ عَلَیْهِ اللّٰہ جَلَّ جَلَالُهٗ ❊ بِھٰذَا سِیْدَ اِللْعَالَمِیْنَ کَمَالُهٗ

پاک الله په ده بخپله درود وائ ❊ په دے خدائ کمال دَ ده خلقوته اوښو

په دے آیت کښی یې دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ نوم په ځائ "نبی" لفظ
راوړه. او دَ نورو پیغمبرانو نومونه ذکر دی. دا دَ خوږ نبی علیه السلام
نخه ده. په دے آیت کښی چه اِنَّ اَوْلَی النَّاسِ بِاِبْرَاهِیْمَ لَلَّذِیْنَ اتَّبَعُوْهُ وَهٰذَا النَّبِیُّ

دے۔ دَ ابراهیم علیه السلام نوم ذکر دے۔ او دَ خوږ نبی صلی الله علیه والسلام
دَپاره "نبی" لفظ ذکر دے۔ او که څیرته دَ خوږ نبی علیه الصّلوٰة والسلام نوم
ذکر دے۔ نو دغلته څه خاص مصلحت وی۔ دلته دَ "صَلوٰة" لفظ دَ الله دَ ملائکو
او دَ مؤمنانو دریواړو دَپاره ذکر دے۔ نو دَ دے به دَ الله او دَ ملائکو او دَ مؤمنانو
دَ صلوٰة جدا جدا معناګانے وی۔ نو دَ خدائے درود دَ هغه رحم دے۔ او دَ خدائے
سخه دَ ده عزتونه دی۔ او فرښتے دَ ده دَ مرتبو دَ زیاتی دَپاره دعاګانے کوی۔
او مونږ خوځان سره دَ دومره ګناهګار والی دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
دَپاره دَ دعا قابل نه ګنړو۔ نو خدائے ته وایو چه ته په خوږ نبی صلی الله علیه
وسلم رحمونه او اکرامونه اوکړے۔ او دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه چه
اصحابو تپوس اوکړو چه مونږ په تا کوم درود وایو۔ نو دوی ورته دا دَ
مونځ درود اوښودو۔ چه تاسو دَ خدائے نه سوال اوکړئ۔ چه هغه په ما
ډیر ډیر رحمتونه همیشه همیشه رالیږی۔ ځکه چه دَ خدائے دَ رحمتونو
څه حد نشته۔ او دَ الله څومره لوئ عنایت دے۔ چه رحمتونه په ده الله
لیږی۔ او نسبت یے مونږ ته کیږی۔ مونږ کله دَ دے قابل یو۔ چه خوږ
نبی صلی الله علیه وسلم غوندے معزز ذات ته څه تحفه پیش کړو۔ حضرت
شاه عبد القادر صاحب لیکی۔ چه هر کله څوک دَ خدائے نه په خوږ نبی علیه
السّلام رحمت نازلیدَ اوغواړی۔ او دَ ده په آل باندے نو دا سے قبول شی
چه په دوی دَ دے په مناسب رحمتونه نازل شی۔ او دَ یو رحمت په ځائے بیه
دیو نکی لس رحمته نازل شی۔ نو دا دَ بنده خپله خوښه ده چه څومره
ګټه کوی اوکړی۔

دلته دَ یو اعتراض جواب لیکم۔ چه خدائے پاک مومنانو ته وائی۔
چه تاسو په خوږ نبی علیه الصلوٰة والسلام درود اووایئی۔ او دوی خدائے ته
وائی چه ته په ده درود اولیګه۔ دَ دے جواب دا دے۔ چه څه په مونږ یو
اوڅه به زمونږ درود وی۔ علامه سخاویؒ لیکی۔ الله هم پاک دے او خوږ
نبی علیه السلام هم پاک دے۔ او مونږ خو دَ عیبونو ګټړی یو۔ دَ پاک

په پاک درود خوند کوی. ځکه مونږ الله ته وایو. چه ته په دغه درود اولیږه.
مونږ په دغه د درود نه ځان قاصر ګنړو. ځکه خدائ ته عرض کوو. چه ته په
دغه درود اووایه. اوخه عجیبه به وی. چه درود په دغه الله دخپل شان مناسب
اولیږی. او مونږ ته صرف د دعا په وجه ثوابونه راکړی. اوس چه څوک د
خوږ نبی صلی الله علیه وسلم سره څومره محبت کوی. دومره دومره دی په خوږ
نبی علیه السلام درود دخدائ نه غواړی. او ځان ته دِ کټه کوی. علامه سخاوی
د امام زین العابدین نه نقل کوی. چه په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
ډیر درود ویل د سُنتی توب نخه دغه. علامه زرقانی په شرح مواهب کښ
لیکی. چه درود ویل دخدای دحکم په تعمیل ثواب ګټل دی. او دخوږ نبی
علیه الصلوٰة والسلام د هغه حقوقو چه په مونږ کا دی ادا کول مقصد دے
حافظ عزالدین بن عبدالسلام وائی چه په درود ویلو سره مونږ دخوږ
نبی صلی الله علیه وسلم سفارش نه کوو. ځکه چه څه به مونږ یوادنخه
په زمونږ سفارش وی. خوخبره داده چه په دیکښ د احسان کونکی پیغمبر
د احسان بدله قدرے دغه. او مونږ ته خدائ حکم اوکړو چه د دے دومره
لوئ محسن پیغمبر بدله ادا کړئ. ولے مونږ د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
د احسان د بدلے ورکولو نه عاجز وو. او خدائ ته دا معلومه وه. نو خدائ
مونږ ته اووے. چه بنه دغه نو تاسو ما ته اووایئ. چه زه پرے رحم اوکړم.
نو تاسو به د محسن احسان په سوال کولو ادا کړئ. دلته د درود مونږ ته
حکم دے. ځکه درود علماء واجب منی.

امام رازیؒ په تفسیر کبیر کښ یو اعتراض لیکلے دے. چه هر کله خدائ پاک
او ملائکے په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم درود وائی نو زمونږ درود ته څه
حاجت دے. نو د دے جواب دادے. چه دا حکم په دے وجه نه دے. چه
ګنے خوږ نبی صلی الله علیه وسلم زمونږ درود ته محتاج دے. که دا سے وے
نو دخدائ د درود نه روستو د ملائکو د درود څه حاجت دے بلکه زمونږ
درود دخوږ نبی صلی الله علیه وسلم دلوئی ظاهر ولو دپاره دے لکه

خدائ مونږ ته حکم کوی. چه تاسو څما ذکر کوئ نو خدائ خو څمونږ ذکر ته محتاج نه دے.

دلته یو بل سوال دے. چه هغه ابن حجر لیکلے دے. چه الله ته د صلوٰة درود نسبت شته. او د سلام نسبت نشته دا ولے؟ نو د دے جواب دا دے. چه د سلام دوه معنا گانے دی. یو دعا ده بل تابعداری ده. نو دا دواړه معنا گانے د مؤمنانو په باره کښ استعمالیدے شی. ځکه چه دلته د دے حکم دے. او د تابعداری معنی په الله او په فرښتو کښ صحیح نه گرځی. ځکه د سلام نسبت خدائ پاک او فرښتو ته او نه شه. علامه سخاوی د احمد یمانی نه یوه قصه نقل کوی. چه څه په صنعاء کښ وُم. چه د یو سړی نه خلقو گیره اچولے وه. ده ترے تپوس اوکړو. چه دا ولے؟ دوی ورته اووے. چه دے ډیر خوش آوازه قرآن لوستونکے وو. دے چه دے ځائ ته را اورسید چه "یُصَلُّوْنَ عَلَی النَّبِیِّ" نو ده د دے په ځائ اووے چه یُصَلُّوْ عَلٰی عَلِیِّ النَّبِیِّ. چه گنے خدائ او د ده فرښتے په حضرت علیؓ چه نبی دے درود وائ (دا یه رافضی وو) نو د دے په لوستو دے گونگے شه. او د دبا گی (برص) مرض پرے اولگیده. او پوند او شل شه. دا د بے ادبئ نتیجه وه. چه د قرآن سره یئ اوکړه. او علیؓ چه پیغمبر نه دے هغه ته یئ پیغمبر اووے. مونږ کله کله دا سے کلے په بے پرواهئ او وایو چه هغه د خدائ د نیوؤ سبب شی. الله دِ مونږ د دے قسم بے ادبو نه بچ کړی.

(۲) قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلٰمٌ عَلٰی عِبَادِهِ الَّذِیْنَ اصْطَفٰی. پ۲۰ ع۱ ته اووایه د ټولو تعریفونو قابل خدائ دے. او د خدائ په چونړ بندگانو دِ سلام وی

فائده: دلته خدائ پاک خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته حکم کوی. چه ته د الله په غوره بندگانو سلام اووایه. او هغه رسولان او نبیان دی. دا تفسیر عبد الرحمان بن زید بن اسلم کوی. او امام ثوری او اسدی وائ. چه د دے نه مراد اصحاب دی. د ابن عباس هم دا قول

دے۔ او چه اصحاب ترے مراد شی۔ نو پیغمبران خود دے نه زیات نیکان بندګان دی۔

(۳) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ صَلّٰی عَلَیَّ صَلٰوةً وَاحِدَةً صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ عَشْرًا۔ (رواہ مسلم)

د ابو هریره رض نه روایت دے۔ ده وئے۔ چه خو د نبی صلی الله علیه وسلم وے۔ چه څوک په ما یو ګذار درود اووائی نو الله په ده لس ګذاره رحمتونه رالیږی۔

فائده:۔ څو مره لویه ګټه ده یو رحم د خدائ د ټول کائنات نه لوئ دے او چه بیا لس رحمتونه په یو درود رالیږی۔ نو دا خو بیا بے حده کرم دے۔ حکه د خدائ دا سے بندګان شته۔ چه په شپه روځ کښ یو یو لکی ۲۵۰۰۰ درود دے تلوره پرے د پاسه درود وائی۔ دا اوس د هر بنده خوښه ده۔ چه څومره کتمل عواړی دومره رحمتونه د د خدائ حاصل کړی۔ دغه قسم روایات د ډیرو اصحابو نه لکه عبدالله، عمرو او عامر بن ربیعه نه هم نقل دی۔ او په دے کښ د فرښتو په دے بنده درود ویل هم روایت دے۔ چه خدائ او فرښتے پرے لس ګذاره درود وائی۔ علامه سخاوی لیکی۔ چه څه رنګ خدائ د خپل نوم سره د محمد علیه السلام نوم شریک کړے دے۔ او د ده اطاعت ته یئے خپل اطاعت ویلے دے۔ او د ده سره محبت ته یئے خپل محبت ویلے دے۔ د غسے په خوبړ نبی صلی الله علیه وسلم درود یئے د خپل درود سره شریک کړه۔ چه څوک په ده یو ګذار درود اووائی نو زه به په ده لس ګذاره درود اووایم۔

او د عبدالله بن عمر په روایت کښ اویا ګذاره دی۔ د دے کی زیاتی چه په یو کښ لس او بل کښ اویا دی وجه علماء داليکی۔ چه دا په اول کښ لس وو۔ خو الله په امت محمدی زیات فضل کاوو۔ نو بیا یئے اویا اویا کړه چه زیات رحم پرے اوشی۔ او بعض علماء وائی چه دا د حالاتو او د انسانانو او وختونو په لحاظ سره کمے زیاتے دے۔ دا خبره د جمعے د ماښځه په پنځویشت او اوویشت کښ تبره شوے ده۔ او ملا علی قاری لیکی چه دا اویا د جمعے د ورځے

د درود په باره کښې دی. په جمعه کښې هره نیکی اویا برخے وی.

(۴) وَعَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیہِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ ذُکِرْتُ عِنْدَہٗ فَلْیُصَلِّ عَلَیَّ وَمَنْ صَلّٰی عَلَیَّ مَرَّۃً صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ عَشْرًا وَفِیْ رِوَایَۃٍ زَائِدًا وَحَطَّ عَنْہُ عَشْرَ سَیِّئَاتٍ وَرَفَعَہٗ بِھَا عَشْرَ دَرَجَاتٍ. (احمد)

او د انس رضی الله عنه نه روایت دے. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه د چا په مخکښې زما د نوم ذکر اوشی. نو پکار دی چه په ما درود اووائی. او څوک چه ما یو ځل درود اووائی. نو الله به پرے لس ځله رحم اوکړی او زیاتی د ده به لس ګناهونه لرے کړی. او د ده به لس مرتبے سیوا کړی.

فائده:- او د براء په روایت کښې دا زیاتے دے. چه دا درود د لس غلامانو د آزادولو هومره ثواب لری. او په طبرانی کښې دا زیاتے دے. چه څوک په ما لس ځله درود اووائی. نو په ده به خدائ پاک سل ځله رحم اوکړی او چه په ما سل ځله درود اووائی نو د ده په تندی به بَرَاءَةٌ مِّنَ النِّفَاقِ وَبَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ اولیکلے شی. چه دے د منافقئ او د اور نه خلاص دے او د ده حشر به د شهیدانو سره اوشی. او د ابوهریره په روایت کښې دا زیاتے دے. چه د چا په ما سل ځله درود اووے. نو په ده به خدائ پاک زر ځله درود اووائی. او چه دے دومره عشق او شوق واخلی. چه په ما د دے نه هم زیاتے اوکړی. نو زه به په قیامت کښې د ده سفارشی او ګواه یم.

د عبدالرحمن بن عوف روایت دے. چه په مونږ کښې پنځه شپږ کسان به همیشه د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم سره یو کس یم وو. چه د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ضرورت پوره کوی. یو ځل ارخوږ نبی صلی الله علیه وسلم باغ ته لاړو. دے وائی چه زه ورپسے هم لاړم. دغلته خوږ نبی علیه السلام مونځ اوکړو او دومره لوئے سجده ئے اوکړه چه ما سره ویره شوه. چه چرته د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم روح مبارک پرواز اوکړو. ما په دے وجه ژړل شروع کړو. او نزدے ورغلم. دوی چه اوزګار شو نو ما ته ئے اووے چه

ثه خبره ده؟ ما ورته خپله فکرمندی دا وبن دے. سجدے او د دوی دروح دالوتو ذکر اوکړو. دوی اوفرمائیل چه دا خو ما دخدائ د شکریے سجده اوکړ چه دوی ځما په امت انعام اوکړو. او هغه دا چه څوک په ما یو ځل دار درود اووائی. نو خدائ پاک وائی. چه زه به د ده لس نیکئ او لیکم. او لس ګناهونه به ورئه معاف کړم. او په بل روایت کښ د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دا جواب وو. چه دغه دے اوس جبرائیل راغے. او ما ته ئے اووے چه ته په دے نه یے خوشحاله؟ چه څوک په تا درود اولیږی نو خدائ به په ده درود اولیږی. او چه څوک په تا سلام اولیږی نو زه به په ده سلام اولیږم. (ترغیب) دغه قسم سخاوی د حضرت عمرؓ نه روایت کوی چه حضرت ابوطلحه وائی. چه یو ځل ارخوږ نبی صلی الله علیه وسلم ډیر خوشحال خوشحاله تشریف راوړو. مخ مبارک ئے زلیده. خلقو عرض اوکړو. چه نن خو تاسو ډیر خوشحاله یئ. چه دا ولے؟ دوی اوفرمائیل چه ما ته د خدائ پاک د طرف خبر راغے. چه څوک ستا په امت کښ په تا یو ځل ار درود اووائی. نو خدائ به د ده ته لس نیکئ ورکړی. او لس بدئ به ئے ورانے کړی. او لس مرتبے به ئے اوچتے کړی. او په یو روایت کښ په دے قصه کښ دی. چه د یو درود لس درود ده او د یو سلام لس سلامه د خدائ پاک د طرف د دے جواب دے. په بل روایت کښ دا زیاتے دے. چه یو ه فرښته به په ده دغه درود وائی. کوم چه دے وائی. او جبرئیل علیه السلام اووے چه خدائ یوه فرښته مقرره کړیده. چه څوک په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم درود وائی. نو دا هم وائی وَاَنْتَ صَلَّى اللهُ عَلَيْكَ چه خدائ پاک دِ په تا هم رحم اوکړی. دا ملائکه درود لوستونکی ته دعا کوی. (ترغیب)

یو اعتراض کیدے شی. چه قران ګواه دے. چه د هرے نیکئ ثواب لس چنده دے. نو بیا د درود څه خصوصیت شه؟ د دے یو جواب مولانا زکریا صاحب ورکوی. چه دغه لس چنده خو دے دالس برے سیوا زیاتی انعام دے. او سخاوی صاحب دا جواب کوی چه

لس چنده دَ خدائ دَ طرف نه درود دَ لس چنده ثواب نه زیات دے. بل دَ دے سره دَ لسو مرتبو زیاتید ه نور زیاتے دے. دَ لسو گناهونو معافی لا نور زیلتے. او دَ لسو غلامانو دَ آزادید و ثواب نور زیاتے دے.

حضرت تهانوئ دَ قرآن شریف یوه اشاره لیکی. چه ولید چه دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په شان کښ گستاخی کړے وه. نو په دَه لس لعنتونه راغلی وو. حلاف[۱]، مهین[۲]، همّاز[۳]، مشّاء[۴] بنمیم، مَنَّاع[۵] للخیر، مُعتَد[۶] اثیم[۷]، عتل[۸]، زنیم[۹]. مکذب[۱۰]. إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ. دَه په دَ قرآن آیتونو نه زړے قصے وے. دا دَ ده په باره کښ الفاظ په ۲۹ پاره سورة نون کښ دی. چه تاسو دَ ولید وینا مه منئ. دے خو ډیر قسم خوړونکے بے وقعت، طعنه کوونکے، گناه کوونکے، سخت مزاج، حرام زاده دے. ځکه چه دے مالدار او دَ اولاد خاوند دے. چه ځما آیتونه دَ دَه په مخکښ لوستے شی. نو دے وائ چه دا دے دلیله خبرے دَ مخکښ نه دَ خلقو راغلی دی. (بیان القرآن)

نو چه دَ دوی په شان کښ په گستاخئ په گستاخ لس لعنتونه راځی. نو دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په درود په وئیلے دَ خدائ دَ طرف نه لس رحمتونه نه راځی. عجیبه نکته ده. (غفره الله)

(۵) عَنْ إِبْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَكْثَرُهُمْ عَلَيَّ صَلٰوةً. (ترمذی)

دَ ابن مسعود نه روایت دے. دَه وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه په قیامت کښ به ډیر نزدے ماته هغه کس وی چا چه په ما ډیر درود وئیلے وی.

فائده:- علامه سخاوی په قول بدیع کښ دَ حضور صلی الله علیه وسلم دا فرمان نقل کوی. چه په قیامت کښ به په ما ډیر درود وئیونکی ماته نزدے دی. مخکښ به راشی. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وائ بیا دُود وائ ځکه چه په قبر کښ به اول ستاسو نه ځما په باره کښ تپوس کیږی. او دَ دے درود په باره کښ فرمان دے. چه دا دَ پل صراط رڼا ده. او درود دوله په آله کښ تللے شی. او دَ قیامت دَ سختو نه بچ کیدونکے به دَ درود ډیر وئیونکے

دی او دے بہ دَ عرش پہ سوری کښې وی۔ پہ دے ورځ بہ بے دَ عرش نہ بل سورے نہ وی۔ نو پہ دے بہ درے تنہ ناست دی۔ یو ډیر درود ویونکے بل پہ سختئ کښې دَ ھغہ امداد کونکے بل دَ خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم دَ سنت ژوندے کونکے۔

او سخاوی دَ ابن عمرؓ پہ روایت نقل کوی۔ چہ خپل مجلس پہ درود ډولے کوئ۔ چہ درود بہ پہ قیامت کښې رنړا وی۔ علامہ سخاوی پہ قوۃ القلوب کښې نقل کوی۔ چہ دَ ډیر والی کم نہ کم شمیر درے سوہ دے۔ حضرتؒ گنگوھی رحمۃ اللہ علیہ بہ خپلو تابعدارو تہ دا مقدار لوستہ ښودل۔ او سخاوی صاحب وائی چہ محدثین ډیر درود پہ خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم وائی۔ او لیکی۔ حکہ دوی بہ پہ قیامت کښې خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم تہ ډیر نزدے وی۔ دغسے ابو عبیدہ او خطیب ابو نعیمؒ نقل کوی۔ او دَ محدثینو نہ مطلب دَ احادیثو لوستونکی او لولونکی دی۔ دا کہ پہ عربئ کښې وی۔ او کہ پہ اردو یا پښتو کښې وی۔ او طبرانی پہ زاد السعید کښې دَ خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم فرمان نقل کوی۔ چہ څوک پہ ما درود پہ کتاب کښې او لیکی۔ نو پہ دہ بہ فرښتے ھمیشہ درود وائی۔ تر څو چہ ځما نوم پہ دے کتاب کښې وی۔ او بل دَ خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم فرمان دے۔ چہ څوک پہ ما سحر او ماښام لس لس کرتہ درود او وائی۔ نو ځما شفاعت بہ بیا مونده۔ او امام مستغفری دَ خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم فرمان نقل کوی۔ چہ څوک سل کرتہ پہ ما ھرہ ورځ درود وائی نو دَ دہ بہ سل حاجتونہ پوره شی۔ دیرش پہ دنیا کښې او باقی بہ پہ آخرت کښې ورکیږی۔

(۶) عَنْ اِبْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِیِّ صلی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِلّٰہِ مَلَآئِکَۃً سَیَّاحِیْنَ یُبَلِّغُوْنَنِیْ عَنْ اُمَّتِیَ السَّلَامَ (نسائی)

دَ ابن مسعود نہ روایت دے دہ وے چہ خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم وے چہ یقیناً دَ خدائی دَ پارہ گرزیدونکے ملائکے دی چہ دوی ماتہ ځما دَ امت سلامونہ راړسوی۔

فائده :- د حضرت علیؓ او امام حسنؓ نه هم دغسې روایت دے . چه تاسو هرچرته یئ . په ما درود وایئ . ستاسو درود ماته رارسي . او دحضرت انسؓ په روایت کښ دا زیاتے دے . چه زه هم په دۀ درود وایم . او لاد دۀ لس نیکئ هم او لیکلے شي . دغسې په مشکوٰة کښ د ابوهریره روایت دے

عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ وَكَّلَ بِقَبْرِيْ مَلَكًا أَعْطَاهُ أَسْمَاعَ الْخَلَائِقِ فَلَا يُصَلِّيْ عَلَيَّ أَحَدٌ إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ إِلَّا بَلَّغَنِيْ بِاسْمِهِ وَاسْمِ أَبِيْهِ هٰذَا فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ قَدْ صَلّٰى عَلَيْكَ - (سخاوی)

د عمار د یاسر د خوئ نه روایت دے . دۀ وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے چه بے شکه الله ځما په قبر داسے ملائکه مقرر کړیده چه دے ته یے د ټولو خلقو د خبرو اوریدو طاقت ورکړیدے په ما به چه څوک ترقیامته درود وائي نو دا ماته د دۀ نوم او د دۀ د پلار نوم بنئي . چه دۀ په تا درود اووے .

فائده :- علامه سخاوی په دیکښ دا زیاتے کړیدے . چه په دۀ بیا خدای پاک لس کرت رحمت رالیږي . او د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے . چه ما خدائ پاک ته سوال کړے وو . چه خدایه څوک چه په ما یو کرت درود او وائي . نو ته په دۀ لس کرته رحمتونه اولیږه . نو خدائ پاک ځما دا سوال قبول کړو او دحضرت انسؓ په روایت کښ دي . چه څوک د جمعے په ورځ یا شپه کښ په خوږ نبی صلی الله علیه و سلم درود اولیږي . نو خدائ پاک به د دۀ سل حاجتونه پوره کړي . او په دوي یوه فرښته مقرره شي . نو دا ماته دغه درود لکه د تحفے رارسوي .

او د دے اعتراض جواب چه هر کله د خوږ نبی صلی الله علیه و سلم په قبر مبارک یوه فرښته مقرره ده . چه په خوږ نبی صلی الله علیه و سلم څوک درود وائي نو دا ورته دا رارسوي . نو دا بیا د فرښتو د ټولئ د گرځیدو څه ضرورت شه . چه دوی ورته هم درود رسوي . نو گرځیدل د ملائکے خود ذکر مجمع کوري . او دعلته چه کوم ذکر کیږي په هغوی وزرے غوړوي .

او ژدوی په دعا کانو آمین وائی. او چه په دے مجمع کښ په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم درود داوو ئیلے شی. نو دا هم خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته په جماعتی رنګ کښ ورسی. نو دا هم په واقعه کښ دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ عزت دَ پاره کیدے شی. نو تعارض را نغے.

(۸) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى عَلَيَّ عِنْدَ قَبْرِي سَمِعْتُهُ وَمَنْ صَلَّى عَلَيَّ نَائِيًا أُبْلِغْتُهُ (بیهقی)

دَ ابو هریرهؓ نه روایت دے. دَ ووے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه ما دَ قبر په خوا کښ ~~دَ~~ خوګ درود او وائی نو دا زه اورم. او چه لرے ئی او وائی. نو دا ما ته رارسیدے شی.

فائده:- دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ قبر مبارک په خوا کښ دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم پخپله درود اوریدَ ډیره دَ فخر، دَ عزت او دَ خوند خبره ده. علامه سخاوی په قولِ بدیع کښ دَ سلیمان بن سحیم نه نقل کوی. چه ما خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښ اولیده. نو ما ترے تپوس اوکړو. چه څوک په تاسو دَ قبر په خوا کښ سلام وائی. نو تاسو پرے پو هیږئ. نو دوی راته اووے چه اَو. او زه دَ ده دَ سلام جواب هم ورکوم.

ابراهیم بن شیبان څو وائی چه زه دَ حج نه پس روضے ته ورغلم. او په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم م سلام اووے. نو دوی راته دَ روضے نه و علیک السلام اووے او ما اوریده. ملا علی قاری وائی. چه دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ قبر دَ خوا درود دَ لرے دَ درود نه زیات غوره دے. ځکه چه دَ غلته کوم دَرد دَ نه او شوق نه مو ندے شی. هغه لرے کوم ځائی حاصلیږی. مظاهرِ حق دَ دے حدیث په تشریح کښ لیکی. چه زه دَ نزدے درود بے واسطے اورم. او دَ لرے دَ فرښتو په واسطه اورم. او په هر صورت کښ دَ سلام جواب ورکوم. خوش قسمته مونږ ته که دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ طرف نه په مبارکے خولے

یو وعلیک السلام راځي نو هم پېږه دَه. او چه دَ هر سلام جواب راځي. نو بیا
خو دَ دینه لوئ نعمت بل نشته الله دِ داځمونږ نصیب کړي. ـــه

دَ هر سلام جواب په شونډو راته مه راکوه ؛ دَ سل سلامو جواب یو سلام کافي وینمه
که یو ګنډ اُرے ستا په زړه کښې ځما خیال تیرشي ؛ زه به فخر ونه په دے قدرے پاندِ پېر کومه

دَ خوبږ نبي صلی الله علیه وسلم په قبر کښې ځمونږ سلام اورېده ځکه
کېږي. چه انبیاء علیهم السلام په قبرونو کښې ژوندي دي. علامه
سخاوي وائي. چه ځمونږ دا ایمان دے. او مونږ دَ دے تصدیق کوو
چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم په قبر کښې ژوندے دے. او دَ خوږ
نبي صلی الله علیه وسلم وجود مبارک زمکه نه شي خوړے او په دے دَ
امت اجماع دَه.

امام بیهقي دَ پیغمبرانو په قبر کښې په ژوندون یوه مستقله رساله لیکلې
دَه او دَ حضرت انس حدیث دے اَلْاَنْبِیَاءُ اَحْیَاءٌ فِیْ قُبُوْرِهِمْ یُصَلُّوْنَ ـــ

پیغمبران په خپلو قبرونو کښې مونځونه کوي ژوندي دي. خوږ نبي
صلی الله علیه وسلم دَ معراج په حدیث کښې وائي. چه زه دَ موسی علیه
السلام په قبر ورغلم. او دوي مونځ کوو. دَ غسے دَ پیغمبرانو په نورکي کښې
دوي وائي ما ابراهیم علیه السلام او عیسی علیه السلام په مانځه اولاړ او لیده
او چه دَ حضرت روح مبارک لاړه او ابوبکر صدیق رض ورته راغے.
نو په دوي ورپریوته او دوي ته یې په خبرو کښې اووے. چه ځما
مور پلار دِ په تا قربان شي. خدائ دِ په تا دوه مرګه نه جمع کوي. یو
مرګ چه مقرر وو هغه راغے. (بخاري) علامه سیوطي په حَیَاةُ النَّبِیِّ
پوره رساله لیکلې دَه.

علامه سخاوي لیکي. چه دَ مدینے منورے         په کورونو او ونو
پېر درود وئیل پکار دي. او چه څومره ورته نزدے کېږي. دومره دِ
درود پېره وائي. ځکه چه دا مقامات دَ وحي په نزول باندے آباد دي.
دلته حضرت جبرئیل او میکائیل بار بار راغلي دي. او دَ دے ځائي

خاوره د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په وجود مبارک باندے مشرف ده. هم د دے ځائ نه دین اسلام او د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم سنت خور شو یدے. چه دلته او سیږے نو خپل زړه د هیرے عیب او ادب نه ډک کړه - لکه چه ګویا ته د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د ذات مبارک په ملاقات کیږے. کورنی جنګونه او فضول خبرے مه کوه - بیا مخ په قبله د قبر شریف سره حاضر شه. او ځلور لاسه لرے او دریږه - سترګے ښکته کړه. او دیر په عاجزئ او ادب عزت دا اوایه.

| | |
|---|---|
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا رَسُوْلَ اللّٰه | سلام دِ وی په تا اے د خدائ رسوله |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا نَبِیَّ اللّٰه | سلام دِ وی په تا اے د خدائ نبی |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا خِیَرَةَ اللّٰه | سلام دِ وی په تا اے غوره د خدائ |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا خَیْرَ خَلْقِ اللّٰه | سلام دِ وی په تا اے په مخلوق کښ غوره |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا حَبِیْبَ اللّٰه | سلام دِ وی په تا اے د خدائ حبیبه |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا سَیِّدَ الْمُرْسَلِیْن | سلام دِ وی په تا اے د رسولانو سرداره |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا خَاتَمَ النَّبِیِّیْن | سلام دِ وی په تا اے د نبیانو ختم کونکیه |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا رَسُوْلَ رَبِّ الْعَالَمِیْن | سلام دِ وی په تا اے د رب العالمین رسوله |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا قَائِدَ الْغُرِّ الْمُحَجَّلِیْن | سلام دِ وی په تا اے روښانه لاس پښے لرونکیه |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا بَشِیْرُ | سلام دِ وی په تا اے زیرے ورکونکیه |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا نَذِیْرُ | سلام دِ وی په تا اے ویرونکیه |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ وَعَلٰی اَهْلِ بَیْتِکَ الطَّاهِرِیْن | سلام دِ وی په تا او په پاکو اهل بیتو ستا |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ وَعَلٰی اَزْوَاجِکَ | سلام دِ وی په تا او په بیبیانو ستا پاکو |
| الطَّاهِرَاتِ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِیْن | چه میندے د مؤمنانو دی. |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ وَعَلٰی اَصْحَابِکَ اَجْمَعِیْن | سلام دِ وی په تا او ستا په اصحابو ټولو باندے |
| اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ وَعَلٰی سَائِرِ الْاَنْبِیَاءِ | سلام دِ وی په تا او په ټولو نبیانو رسولانو |
| وَالْمُرْسَلِیْنَ وَسَائِرِ عِبَادِ اللّٰهِ | او ټولو نیکانو بندګانو سبب |
| الصَّالِحِیْنَ جَزَاکَ اللّٰهُ عَنَّا | ورکړی تا ته خدائ زموږ د طرف نه |

يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفْضَلَ مَا جَزٰى
نَبِيًّا عَنْ قَوْمِهٖ وَ رَسُوْلًا
عَنْ اُمَّتِهٖ وَصَلَّى اللّٰهُ عَلَيْكَ كُلَّمَا
ذَكَرَكَ الذَّاكِرُوْنَ وَ كُلَّمَا
غَفَلَ عَنْ ذِكْرِكَ الْغَافِلُوْنَ
وَ صَلّٰى عَلَيْكَ فِي الْاٰخِرِيْنَ اَفْضَلَ
وَ اَكْمَلَ وَ اَطْيَبَ مَا صَلّٰى عَلٰى
اَحَدٍ مِّنَ الْخَلْقِ اَجْمَعِيْنَ كَمَا
اَنْقَذَنَا بِكَ مِنَ الضَّلَالَةِ
وَ بَصَّرَنَا بِكَ مِنَ الْعَمٰى وَالْجَهَالَةِ
اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ
اَشْهَدُ اَنَّكَ عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ
وَ اَمِيْنُهٗ وَ خِيَرَتُهٗ مِنْ خَلْقِهٖ
وَ اَشْهَدُ اَنَّكَ قَدْ بَلَّغْتَ
الرِّسَالَةَ وَ اَدَّيْتَ الْاَمَانَةَ
وَ نَصَحْتَ الْاُمَّةَ وَ جَاهَدْتَ
فِي اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ اَللّٰهُمَّ اٰتِهٖ
مَا يَنْبَغِيْ اَنْ يَّاْمُلَهُ الْاٰمِلُوْنَ
(قُلْتُ وَ ذَكَرَهُ النَّوَوِيُّ فِيْ مَنَا
سِكِهٖ بِاَكْثَرَ مِنْهُ -)

اے د خدائ رسوله ډیره غوره بدله
چه یو پیغمبر او رسول ته د خپل قوم د طرفه ورکړی
شوی وی. او د طرفه د امت د ده نه او په
تا دِ درود وی هر کله چه ذکر کونکی ذکر کوی
او غافلان مستانه غافله وی. او درود دِ وی
په تا په روستنو کښی غوره. کامل او ډیر د
هغې درود نه چه په ټول مخلوق کښی په
چا لوستے شی. لکه چه تا مونږ د ګمراهئ
نه را اوخکو او د ړوندوالی نه دِ بینا کړو
او د جهالت نه دِ او ښکو. زه ګواهي کوم
چه الله لوئ دے. او څه ګواهي کوم
چه دے بنده او رسول د خدائ دے. او
امانتګر دے او غوره د مخلوقاتو دے
او زه ګواهي کوم. چه تا پیغمبری رسولے ده
او تا امانت ادا کړے دے. او تا امت ته
نصیحت کړیدے. او تا د خدائ په کار کښ
حد درجه کوشش کړیدے. اے خدایه ده
ته ډیرے نه ډیره هغه بدله ورکړے کومه چه
امید لرونکی امید لری. دا د سلام
جواب دے.

د دے نه پس به د ځان او د ټولو مومنانو نرانو او ښځو د پاره دعا کوی. بیا به حضرات شیخینو باندے چه ابو بکرؓ او عمرؓ دی سلام وائی. او د دوی د پاره به دعا کوی. چه خدایه دوی چه د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم کوم ډیر امداد د دین په خورولو کښ کړیدے. د دے دوی ته ډیرے ښے بدلے ورکړے. او دا اوګنړه چه د قبر په خوا کښ سلام

دَ درود نه زيات غوره دے. علامه باجي درود غوره وائي. خو علامه سخاوي
سلام زيات غوره ګڼړي. او دا دَ صاحب قاموس رائے ده. هم دَ ابو هريره
حديث دے. په ابو داؤد کښ دي چه څوک په ما دَ قبر په خوا کښ سلام وائي
نو ما ته ځما روح راګرځولے شي. تر دے چه زه دَ ده دَ سلام جواب ورکړم
نو سره به دا وي چه دواړه وائي. چه په ټولو مختلفو رواياتو عمل
اوشي. دا سے دِ وائي اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَارَسُوْلَ اللهِ ابو عبدالله په
مستوجب کښ چه حنبلي دے ليکي. چه دَ قبر په خوا کښ دِ دا سے وائي.

اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ قُلْتَ فِيْ كِتَابِكَ
لِنَبِيِّكَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَلَوْ اِنَّهُمْ
اِذْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ جَآءُوْكَ
فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ
لَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا اللّٰهَ
تَوَّابًا رَّحِيْمًا وَاِنِّيْ قَدْ اَتَيْتُ
نَبِيَّكَ مُسْتَغْفِرًا فَاَسْئَلُكَ اَنْ
تُوْجِبَ لِيَ الْمَغْفِرَةَ كَمَا اَوْجَبْتَهَا
لِمَنْ اَتَاهُ فِيْ حَيَاتِهٖ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ
اَتَوَجَّهُ اِلَيْكَ بِنَبِيِّكَ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

اے خدايه! تا په قرآن کښ دَ خپل نبيؑ
په باره کښ فرمائيلي دي. چه که دا ظالمان
ستا سخ ته راغلي وے. او دَ خدائ نه
ئے بخنه غوښتے وے. او خوږ نبي عليه السلام
هم دَ دوي دَ پاره بخنه غوښتے وے. نو
نو به قبلونکي او مهربان خدائ په دَ دوي توبه
قبوله کړے وے. او زه دَ خوږ نبيؐ خوا ته
راغلے يم. بخنه غواړم. ته ځما بخنه واجبه
کړه. لکه چه دا واجبه کړے وه تا دَ
خوږ نبي صلی الله عليه وسلم دَ راتلونکو
دَ پاره. اے خدايه زه ستا طرف ته
دَ خوږ نبي صلی الله عليه وسلم په واسطه توجه کوم".

وراسے بے نورے دعاګانے ليکلي دي.

(۹) عَنْ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ قُلْتُ
يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ اُكْثِرُ الصَّلٰوةَ
عَلَيْكَ فَكَمْ اَجْعَلُ لَكَ مِنْ
صَلٰوتِيْ قَالَ مَاشِئْتَ قُلْتُ الرُّبُعَ
قَالَ مَا شِئْتَ فَاِنْ زِدْتَّ فَهُوَ

دَ اُبَيْ دَ کعب دَ خوا نه روايت دے
ده وے چه ما خوږ نبي صلی الله عليه
وسلم ته اووے چه زه په تا باندے درود ليږم
خو دے وخت دَ خپلے دعا په وخت کښ
څومره کړم. دوي اوو چه څومره کوے ما ئے.

خَيْرٌ لَكَ قُلْتُ فَالثُّلُثَيْنِ قَالَ
مَا شِئْتَ فَإِنْ زِدْتَ فَهُوَ خَيْرٌ
لَكَ قُلْتُ أَجْعَلُ لَكَ صَلٰوتِيْ
كُلَّهَا قَالَ إِذًا تُكْفٰى هَمَّكَ وَ
يُكَفَّرُ لَكَ ذَنْبُكَ (ترمذی)

څلورمه یې اکړم. دوی وے چه څومره دِ خوښه
وی خو که زیات دِ کړو نو ښه به وی. ما وے
په درے کښ چه دوه وی. دوی وے چه
څه دِ خوښه وی. خو که ته زیاتے اکړے
نو ښه به وی. ما وے ټول وخت یې کړم.
خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اووے. چه بیا خو به ستا دَ ټولو فکرونو
کفایت اوشی۔

فائده:- دا دَ وظیفے دَ پاره مثلاً دوه گهنټے مقرر کړے وے. نو دے عرض
کوی. چه په دے وخت کښ څومره درود په تا اووایم. او څومره نورو وظیفه
ذکر تلاوت وغیره کوم. نو بیا پخپله وائی. چه څلورم په ښه وی۔
خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اووے. که زیاته شی نو ښه به وی. دا
وے په دریو کښ دوه به ښه وی. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ورته
اووے. چه که زیات شه نو ښه به وی. نو دا اووے. چه که ټولے
دواړه گهنټے اولگوم. نو په دے خوږ نبی صلی الله علیه وسلم،
خوشحاله شه. او دا ته یې اووے. چه دَ ذکرونو تلاوتونو مقصد
خو غم دَرد دَ دنیا لرے کول وی. نو دا به دِ په ډیر درود حاصل شی. په
درود کښ ذکر هم شته. او په دے کښ دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
تعظیم هم دے. څکه په دے ټول وخت کښ خوږ نبی صلی الله علیه و
سلم خوښ کړل.

شیخ عبد الحق صاحب وائی. چه زه دَ خپل بزرگوار عبد الوهاب
متقی نه دَ مدینے طرف ته دَ رخصت اخستو دَ پاره ورغلم. نو دوی راته
اووے. چه دا گوره دا سے سفر دے. چه دَ فرائضو نه روستو ټول
اوقات په درود شریف اولگوه. نو ما څه او نه کړے. دوی وائی
چه ما اووے. دَ دے په څه مقدار وی. نو دوی راته اووے چه دَ دے
دَ پاره مقدار نشته. ټول وخت په درود اولگوه. په درود کښ

ځان رنګ کړه. په دے دا اعتراض نه کیږی. چه دَ دے نه معلومه شوه چه درود دَ ټولو ذکرونو نه ښه دے. ځکه چه دا دَ وختونو او حالاتو خبره ده. لکه په اذکارو کښې الحمد لله ته دَ ټولو ذکرونو نه غوره ویلے شوید ه. لکه عبد الحق صاحب ته دَ مدینے دَ سفر دَ پاره دَ درود دَ ټولو اوقاتو دَ پاره ویناکیږی.

خوږ نبی صلی الله علیه وسلم بحیثه خلورمه دَ شپے تیره شوه. نو دوی پاڅیدو اووے. چه اے خلقو ذکر کوئ. اے خلقو ذکر کوئ. اوله شپیلئ راغله او دویمه پس هغه ورپسے راتلونکے ده. د رومبئ شپیلئ او دویمه شپیلئ په سورة نازعات کښې ذکر ده. نو دا دَ درود دَ ویر والے دَ حالاتو او اوقاتو دَ اختلاف په وجه دے.

(۱۰) عَنْ اَبِی الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلّٰی عَلَیَّ یُصْبِحُ عَشْرًا وَحِیْنَ یُمْسِیْ عَشْرًا اَدْرَکَتْهُ شَفَاعَتِیْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ. (طبرانی)

دَ ابی الدرداء نه روایت دے. دا وائی چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وفرمائیل. چه څوک په ما دَ سحر په وخت کښې لس کرته او دَ ماښام په وخت کښې لس کرته درود اووائی. نو دَ ده به دَ قیامت په ورځ زما شفاعت اورسیږی.

فائده:- دلته خو دَ لسو قید دے. او دَ ابو بکر رض په روایت کښې مطلق درود دَ شفاعت سبب ښودلے شوید ے. دَ ابو هریرة رض په روایت کښې دَ ماځه نه پس درود دے. په دے به خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دده دَ پاره ګواهی کوی. او دَ رویفع په روایت کښې دا درود ښودلے شوید ے. چه اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّ اَنْزِلْهُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَکَ یَوْمَ الْقِیَامَةِ چه په دا به دده شفاعت په ما واجب شی. علامه سخاوی دَ ابو هریره په روایت وائی. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ خپل قبر دَ څوا درود اوری. او دَ لرے دَ درود دَ پاره خدائے یوه ملائکه مقرره کړی. چه هغه دا درود ماته راورسوی. او خدائ پاک

د دنیا او د آخرت کارونو د پاره کافی گرځی. او خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وائی چه زه به د دې گواه یا سفارشی شم. نو د مدینې د خلقو د پاره گواه او د نورو د پاره به سفارشی وی. یا د فرمانبردارو د پاره گواه او د نافرمانو د پاره به سفارشی وی.

(۱) عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ عَبْدٍ صَلّٰى عَلَيَّ صَلٰوةً اِلَّا عَرَجَ بِهَا مَلَكٌ حَتّٰى يُجِيْئَ بِهَا وَجْهَ الرَّحْمٰنِ عَزَّ وَجَلَّ فَيَقُوْلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالٰى اِذْهَبُوْا بِهَا اِلٰى قَبْرِ عَبْدِىْ تَسْتَغْفِرُ لِقَائِلِهَا وَتُقِرُّ بِهَا عَيْنُهٗ (قول بدیع)

د عایشې رض بی بی نه روایت دے. دے وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه کوم بنده په ما درود او وائی نو یو ملائک دا د خدای په حضور کښ پیش کړی. نو خدای زموږ رب چه برکتی او لوئی دے. او به وائی چه دا څما د بنده د قبر سره یوسئ چه د ویونکی د پاره بخنه او غواړی. او چه په دے د ده سترگے یخے شی.

**فائده:-** په زاد السعید کښ د مواهب لدنیه نه نقل دے. چه په قیامت کښ چه د یو مؤمن نیکئ کمے شی. نو د یوے گوتے برابر یوه پرزه به خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په دے تله کښ کیږدی. نو دا تله به درنه شی. دا مؤمن به او وائی چه ته څوک یې. ستا نه مور پلار قربان شه؟ دے به او وائی. څه خو ستا پیغمبر یم. او دا ستا هغه درود دے چه تا په ما وایلے وو. ما ستا حاجت په دے پوره کړو. دا د دے پرزے وجه نه ده دا قدر د اخلاص دے. وزن په اخلاص زیاتیږی. مخکښ د کلمه شهادت د پرزے حدیث تیر شویدے چه یو کم سل دفترونه یې دا نیټ کړه. د الله د نوم څوک مقابله کولے شی. الله د څمونږ د شهادة کلمه او درود د اخلاص په رنګ رنګ کړی. او وزنی یې شی. چه ډیری مو پوره اوځی.

(۲) عَنْ اَبِىْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنْ

د ابو سعید خدری نه روایت دے.

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ أَيُّمَا رَجُلٍ مُسْلِمٍ لَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ صَدَقَةٌ فَلْيَقُلْ فِيْ دُعَائِهِ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَرَسُوْلِكَ وَصَلِّ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ۔ فَإِنَّهَا زَكٰوةٌ وَقَالَ لَا يَشْبَعُ الْمُؤْمِنُ خَيْرًا حَتّٰى يَكُوْنَ مُنْتَهَاهُ الْجَنَّةُ (ابن حبان)

ده وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے۔ چه کوم مسلمان بنده چه د ده سره د خیرات کولو څه نه وی۔ نو دے په خپله دعا کښ او وائی۔ چه اے الله په محمد خپل بنده او رسول رحم اوکړے۔ او په ایماندارو سړو او ښځو او په مسلمانانو سړو او ښځو رحم اوکړے۔ نو دا به د ده د پاره د خیرات په ځائ اودریږی۔ او د مؤمن ګیډه په هیڅ خیر نه ډکیږی۔ تر دے چه جنت ته اورسیږی۔

فائده:۔ علامه سخاوی وائی۔ چه ابن حبان په دے یو فصل قائم کړیدے۔ چه درود د صدقے په ځائ اودریږی۔ اکثر علماء وائی چه درود د صدقے نه زیات غوره دے۔ ځکه چه صدقه خو یواځے بندیان اداکوی او درود د خدائ بندیان او فرښتے ټول وائی۔

دغه بره قسم مضمون د ابوهریرهؓ او حضرت علیؓ نه هم په روایت ثابت دے۔ او د حضرت علیؓ په روایت کښ دا دی۔ چه درود د دعاګانو حفاظت کونکے دے۔ د خدائ د رضا سبب دے۔ او عملونو لره زیاتونکے او پاکونکے دے۔ او انسؓ روایت کوی۔ چه درود د ګناهونو کفاره ده۔

او د حدیث دا ټکړه چه د مؤمن ګیډه نه مړیږی۔ نو صاحب د مشکوٰة د دے خیر نه مراد علم اخلی۔ سره د دے۔ چه خیر نیکئ ته هم وائی۔ کامل مؤمن هر وخت د هر قسم نیکو په کوشش کښ وی۔ هر ځائ د هرچا نه خیر لټوی۔

تر دے چه د خیرات مال ورسره نه وی۔ نو په درود دا خیرات لټوی۔ خیر که هر نیکئ ته وائی۔ خو چه علم ترے مراد شی۔ نو دا مطلب به شی چه طالب العلم د آخر عمر پورے علم حاصلوی۔ او په دے نه مړیږی۔

نو دے چه دے دا علم جنت ته داخل کړی ـ په دے حدیث کښ طالب العلم ته یو قسم د جنت زیرے ورکړے شه ـ الحمد لله چه دا د علم شوق ما اسره دے او په او یا یم کال کښ هم او ټول ژوندم په تصنیف او د دین په نشر و اشاعت کښ تیریږی ـ الله دِ ما او تاسو ټول د علم په طلب کښ لګیدلی اوساتی او د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دا زیرے د خدائ زمونږ د ټولو د پاره او کړځوی ـ چه دا علم مو جنت ته یوځی ـ (آمین)

# تکمِله!

د ډیرو احادیثو نه د درود شریف دا برکات ثابت شو ـ علامه سخاوی د دے ذکر اجمالاً کړیدے د بنده د درود په جواب کښ الله او فرښتے او په خپله خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په دے بنده درود وائی ـ په درود عملونه پاکیږی د ده مرتبے پورے زیاتیږی ګناهونه یے ورے معاف کیږی ـ او دا درود د ده د پاره بخنه غواړی ـ او د ده په عملنامه کښ د یو قیراط برابر ثواب لیکلے شی ـ چه دا د احد د غره هومره دے ـ او د ده عملونه په لوی تله تللے شی ـ او د ده د دنیا او آخرت ټول حاجتونه به پوره کیږی ـ او د ده ثواب د غلامانو د آزادولو نه زیات دے ـ د دے د خطرونه بچ وی ـ د ده د پاره خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ګواه وی ـ او د ده شفاعت په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم واجب کرځی ـ او د الله رضا او رحمت پورے نازلیږی ـ او د الله د خفګان نه بچ وی ـ په قیامت کښ به د عرش د سوری لاندے وی ـ او د نیکو تله به په درود دروندیږی ـ او حوض کو ثرته به حاضریږی ـ او د قیامت د تندے نه به بچ وی ـ د دوزخ د اور نه به بچ وی ـ په صراط به په اسانئ تیریږی ـ د مرګ نه مخکښ به خپله ځکو نه اووینی ـ او په جنت کښ به ډیرے بیبیانے لری ـ د دے ثواب د شلو جهادونو

نه زیات دے۔ دَ عاجز دَ خیرات په ځائ او دریږي۔ په دے په مال کښ برکت
راځي۔ او دَ ده شکل حاجتونه پوره کیږي۔ بلکه زیات په ټولو عملونو کښ دا
خدائ ته محبوب عمل دے۔ دَ مجلسونو ډول دے۔ غریبي پرے لرے
کیږي۔ او دے دَ خیر اسباب تلاش کولے شي۔ او دے به په قیامت کښ
خوږ نبي صلی الله علیه وسلم ته زیات نزدے وي۔ او دَ دے برکات به
ده ته او دَ ده ځامنو نوسو ته رسي۔ او چه مړې ته یئ او بخي نو هغه به ترے
هم فائده حاصلوي۔ او دَ الله او دَ هغه دَ رسول سخه به نزدے والے
حاصل کړي۔ دا رنړا ده، په دښمنانو دَ غلبے ذریعه ده۔ زړونه دَ منافقتي
او نورو رنګونو نه پاکوي۔ دَ خلقو په زړونو کښ دَ ده سره محبت پیدا
کیږي۔ او په خوب کښ یئ دَ خوږ نبي صلی الله علیه وسلم سره ملاقات
کیږي۔ او خلق به دَ ده غیبت نه کوي۔ نو خومره چه کیدے شي په درود
شریف کښ زیات وخت تکول پکار دي۔ په ده خوشحالي او بخنے حاصلیدے
شي۔ ته به په یو درود لس درودونه حاصل کړے۔ دا داسے سوداګري
ده چه زیان پکښ نشته۔ دَ بزرګانو دَ سحر او ماښام معمول پاتے
شویدے۔ په دے زړه روښانه کیږي۔ دَ الله رضا پرے حاصلیږي
او دَ قیامت په ډیرے یرو تکے ورځ به دے په امن کښ وي۔
وَصَلَّى اللّٰهُ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِهٖ وَصَحْبِهٖ اَلْفَ اَلْفَ مَرَّةٍ

# دویم فصل

(۱) عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِیْ لَیْلٰی
قَالَ لَقِیَنِیْ کَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ فَقَالَ
اَلَا اُهْدِیْ لَکَ هَدِیَّةً سَمِعْتُهَا
عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

دَ عبد الرحمان نه چه دَ ابي لیلیٰ ځوئ دے
روایت دے۔ ده وے۔ چه ما سره کعبه
دَ عجره ځوئ یو ځائ شه۔ نو ده راته
اووے۔ چه زه درته یوه تحفه درنکړم؟

فَقُلْتُ بَلٰی فَاَهْدِهَالِیْ فَقَالَ سَأَلْنَا
رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ
فَقُلْنَا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ کَیْفَ الصَّلٰوةُ
عَلَیْکُمْ اَهْلَ الْبَیْتِ فَاِنَّ اللّٰهَ قَدْ
عَلَّمَنَا کَیْفَ نُسَلِّمُ عَلَیْکَ قَالَ
قُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی
آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّیْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ
وَعَلٰی آلِ اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ۔
اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ
کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی آلِ
اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ (بخاری)

چه ما دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه اوریدلے
دَه. ما ورے ولے نه! تحفه را اکړه. پس دَه راته
اووے. چه مونږ دَ خوږ نبی صلی الله علیه
وسلم نه سوال اوکړو. چه دَ خدائ رسوله
مونږ په تاسو څه رنګ او په اهل بیتو څه رنګ
درود وایو. ځکه چه خدائ مونږ ته صرف دَ سلام
طریقه ښودلے دَه. نو دوی راته دا درود
اوښوو. چه اے الله! په محمّد او دَ دَه په آل دَ
ابراهیم او دَ دَه دَ آل هسے رحم اوکړه. ته
ستائیلے شوے لوئ یې. اے الله برکتونه
نازل کړے په محمّد او په آل دَ دَه لکه چه برکتونه
دِ نازل کړی وو په ابراهیم او په آل دَ ابراهیم بے شکه ته ستائیلے شوے لوئ یې.

فائده:- اصحابو په یو بل ته دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ذکر او دَ هغوی
احادیث دَ تحفے په رنګ کښې ورکول. دَ خورا کونو دَ دوی سره څه قدر نه وو
چه چا ته یې په تحفه کښې ورکړی. ځکه کعب دے درود ته تحفه اووے. یو
ګذار ته پرے غصے دَ درود په باره کښې دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو
دوئی لږ چپ شو. اصحابو خیال اوکړو چه دا جوړ مناسب سوال نه وو. خو لږ
ساعت پس جواب دوی ته ورکړو او شوه. او دغه دَ دے حدیث درود یې اوښوده
خوږ نبی صلی الله علیه وسلم مختلفو سوال کونکو ته لږ په مختلفو لفظونو
سره درود ښودلے دے. دا ځکه چه په یو قسم لفظونو به بیا دَ جوب راشی
دا دَ رسے حدیث درود په بخاری کښې شته دے. چه ډیر صحیح دے. احناف
دا درود په تشهد کښې دلیل غوره ګڼړی. دا په منیه کښې هم ذکر دے.
نو دا درود په ډیرو روایاتو دَ ټولو دَ ټولو درودونو نه افضل دے. نوروی

لیکي چه که چا قسم او خوړ چه څه به د ټولو نه غوره درود وایم. نو د دے درود په لوستو به د ده قسم پوره شي. په دے درود کښ یو څو فائدے دي. اصحابو چه وے چه موږ ته سلام راځي نو د دے نه مراد د التحیات هغه السلام علیک تر آخره دے. دریم دا چه دلته د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم درود ته د ابراهیم علیه السلام د درود سره تشبیه ورکړے شوے ده. نو عام قاعده دا ده. چه مشبه به د مشبه نه زیاته وي. لکه چه څوک او وائي چه زید د حاتم په شان سخی دے. نو د دے نه دا معلومیږي چه حاتم زیات سخی دے. نو گویا د ابراهیم علیه السلام درود د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د درود نه زیات دے. ابن الحجر په فتح الباری کښ د دے لس جوابونه لیکلي دي. نو د دے یو جواب دا دے. چه اکثر قاعده هم دغه ده. خو کله کله د څه مصلحت د پاره خبره اړولے وي. لکه مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ شه. نو دلته د الله د نور تشبیه د ډیوے سره ورکړے شوے ده. سره د دے چه د خدائے نور د ډیوے نه ډیر زیات دے. بل دا چه حضرت ابراهیم په ټولو پیغمبرانو کښ د لے خاص کړے شه؟ حضرت تهانوئ د دے ډیر جوابونه کړیدي. خو مولانا خیل جواب لیکي. چه ابراهیم علیه السلام د خدائے خلیل وو. وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا. نو په ده درود د محبت نه ډک دے. او محبت د هر څه نه زیات دے. ځکه چه د محبت درود ډیر خوږ او لوړ دے. بل زمونږ نبی علیه السلام د خدائے حبیب دے. نو ځکه د دواړو درودو نه د یو بل مشابه شو.

په مشکوٰة کښ د ابن عباسؓ په روایت یو قصه نقل ده. چه اصحابو په کور کښ د پیغمبرانو ذکر کوؤ. چه ابراهیم خلیل الله دے، موسیٰ کلیم الله دے او عیسیٰ روح الله دے، او آدم صفی الله دے. په دے کښ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم راغے. نو دوی او وے چه ما ستاسو خبرے واوریدے دا صحیح ده. چه دا پیغمبران په دے صفاتو ممتاز شویدي. خو زه عندر

واوْرئ. چه څه حبیب الله یم. او څه په دے فخر نه کوم. او په قیامت کښ
به دَ حمد جهنډه څما په لاس کښ وی. او دَ دے جهنډے دَلاندے به آدم
علیه السلام او ټول پیغمبرانؒ او لاړ وی. او څه فخر نه کوم. او په قیامت کښ به
اول زما شفاعت قبلیږی. او په دے فخر نه کوم. او دَ ټولو نه مخکښ دَ جنت
دروازه زه پرانستونکے یم. او په دے جنت کښ به اول زه او څما دَ امت
فقراء داخلیږی. او په دے هم فخر نه کوم. او زه دَ مخکنو او روستنو ټولو
نه خدائ پاک ته نزدے یم. او زه په دے فخر نه کوم. نو تاسو پوهه شئ
چه په محبت او خلت کښ ډیر مناسبت دے. ځکه دَ خوږ نبی صلی الله علیه
وسلم درود یے دَ ابراهیمؑ دَ درود سره مشابه کړو. بل ابراهیم علیه السلام دَ
خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په نیکا نو کښ دے. ځکه خوږ نبی صلی الله علیه
وسلم وائی. چه مَنْ اَشْبَهَ اٰبَاهُ فَمَا ظَلَمَ. دَ پلرونو نیکونو سره مشابهت
قابل تعریف خبره ده.

په لمعات کښ لیکی. چه حبیب الله دَ خلیل الله نه لوئ دے. ځکه په حبیب
کښ خُلّتْ داخل دے. دَ عیسے کلیم او صفی او نورو صفاتو ته هم داشامل دے.
محبت ډیره لویه خبره ده.

(۲) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وسلم مَنْ سَرَّهٗ اَنْ یَّکْتَالَ بِالْمِکْیَالِ - الْاَوْفٰی اِذَا صَلّٰی عَلَیْنَا اَهْلَ الْبَیْتِ فَلْیَقُلْ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدِنِ النَّبِیِّ الْاُمِّیِّ وَاَزْوَاجِهٖ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِیْنَ وَذُرِّیَّتِهٖ وَاَهْلِ بَیْتِهٖ کَمَا صَلَّیْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ. (ابوداؤد)

دَ ابو هریرهؓ نه روایت دے. ده وئ چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه څوک په دَ خوشحاله وی. چه دَ ده درود دے په لویه پیمانه کښ پیمانه شی. نو دا سے دِ وائی. چه اے خدایه! په محمد نبی امی او دَ ده په بیبیا نو چه دَ مؤمنانو میندے دی. او په اولاد دَ ده او دَ کور په خلقو درود اولیږے. لکه چه تا درود لیږلے وو په ابراهیم بے شکه ته ستائیلے شوے لوئی یې.

فائده:- اُمّی دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم خاص لقب دے. او دا په ټولو
اسمانی کتابونو کښ ذکر دے. (مظاهر) "اُمّی" چه سبق یې نه وی ویلے.
لیکل، لوستل نه ورځی. نو دا ډیره لویه معجزه ده. چه وی اُمّی او خلقو ته
داسے قرآن اوروی. چه دَ هغے دَ یو سورة هم څوک مقابله نشی کولے.

خوږ نبی چه وو اُمّی او نا خوانده ؛ کتابونه تیر یې واړه چه منسوخ کړه
خما حبیب چه ده لیکل لوستل او نه پیژندل ؛ په اشارو یې استاذی دَ استاذانو اوکړه

شاه ولی الله صاحب شیخ المشائخ په حرز ثمین کښ لیکی. چه ما ته پلار
دا درود ښودلے وو. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ النَّبِیِّ الْاُمِّیِّ وَآلِهٖ وَبَارِكْ وَسَلِّمْ —
دوی وائی. ما دا درود خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته په خوب کښ واوروو
نو دوی دا خوښ کړو. په لویه پیمانه کښ هغه څیز پیمانه کولے شی. چه ډیر
وی. نو درود چه په لویه پیمانه کښ تللے کیږی. دا به ډیر لوئ وی مقدار
به یې ډیر وی. او دَ درود دَ ډیر والی مطلب دا دے دَ ثواب ډیر والے دے.
لږ څیز په لویه تله کښ نه شی تللے. لکه غنمے سپے دَ لرګو په لویو تلو کښ
تللے شی. په دے کښ واړه څیزونه نه تلی. او علامه سخاوی وائی. چه
دَ لږ مقدار څیزونه په تله تللے شی. او دَ ډیر مقدار څیزونه په پیمانو
پیمانه کیدے شی. دا په تلو کښ نه راځی.

او حضرت علی په لویه پیمانه کښ دَ تللو دا درود وائی. اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ
صَلَوٰتِكَ وَبَرَكَاتِكَ عَلٰی مُحَمَّدٍ النَّبِیِّ وَاَزْوَاجِهٖ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِیْنَ وَذُرِّیَّتِهٖ وَاَهْلِ
بَیْتِهٖ كَمَا صَلَّیْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ اِنَّكَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ.

او حسن بصری وائی. چه څوک دَ حوض کوثر نه ډکه پیاله څکل غواړی
نو دا درود دِ وائی. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَاَوْلَادِهٖ وَاَزْوَاجِهٖ
وَذُرِّیَّتِهٖ وَاَهْلِ بَیْتِهٖ وَاَصْهَارِهٖ وَاَنْصَارِهٖ وَاَشْیَاعِهٖ وَمُحِبِّیْهِ وَاُمَّتِهٖ وَ
عَلَیْنَا مَعَهُمْ اَجْمَعِیْنَ یَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِیْنَ.

دا حدیث قاضی عیاض هم په شفا کښې لیکلے دے۔ سه

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا ✽ عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۳) عَنْ اَبِی الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَکْثِرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ عَلَیَّ یَوْمَ الْجُمُعَةِ فَاِنَّهٗ یَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ تَشْهَدُهُ الْمَلٰئِکَةُ وَاِنَّ اَحَدًا لَا یُصَلِّیْ عَلَیَّ اِلَّا عُرِضَتْ عَلَیَّ صَلٰوتُهٗ حَتّٰی یَفْرُغَ مِنْهَا قَالَ وَ قُلْتُ بَعْدَ الْمَوْتِ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَی الْاَرْضِ اَنْ تَاْکُلَ اَجْسَامَ الْاَنْبِیَآءِ عَلَیْهِمُ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ۔ (ابن ماجه)

د ابی درداء نه روایت دے۔ دا وائی۔ چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وئیلی چه تاسو د جمعے په ورځ په ما ډیر درود وایئ ځکه چه په دے ورځ ملائکے حاضریږی نو هر کله چه په ما درود وئیونکے فارغ شی۔ نو دوی ما ته دا درود پیش کړی۔ ما عرض اوکړو۔ چه ستاسو د وفات نه پس به څه رنګ حال وی؟ نو دوی اووئے۔ چه په زمکه د پیغمبرانو وجود خوړل حرام دی۔

فائده:- ملا علی قاری وائی۔ چه هر کله په زمکه د پیغمبرانو وجود خوړل حرام شو نو بیا د دوی مرګ او ژوند به برابر شو۔ او د دے حدیث نه معلومه شوه۔ چه دا درود د وجود او روح دواړو ته پیش کیږی۔ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د ځان متعلق وائی چه ما ته په قبر کښې داسے ژوند راکړی چه ما ته به خدائے رزق راکوی۔ او د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په معراج کښې د موسیٰ علیه السلام په قبر کښې مونځ کول د ټولو پیغمبرانو د ژوندون دلیل دے۔ او د رزق نه مراد معنوی رزق دے۔ او حسی ترے هم مراد کیدے شی۔

د جمعے ورځ ډیره مبارکه ورځ ده۔ په دیکښې آدم پیدا شوے وو۔ په دیکښې وفات شوے وو۔ په دے ورځ به دواړه شپیلئ وهلے شی۔ ځکه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په دے ورځ د ډیر درود وئیلو فرمان کړیدے صحابو اووے۔ چه تاسو به په قبر کښې خاورے یئ نو بیا به تاسو ته درود څه رنګ

پیش شی؟

نو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اووے۔ چه په زمکه د پیغمبرانو وجود مبارک خوړل حرام دی۔ او د ابوامامه په حدیث کښې راځی۔ ستاسو درود ده ماته د جمعې په ورځ پیش کیږی۔ اوچه څوک په ما ډیر درود وائی نو دے به په قیامت کښې ماته ډیر نزدے وی۔ او د ابو مسعودی انصاری په روایت کښې راځی۔ چه دغه درود ماته فوراً پیش کیږی۔ او د حضرت عمرؓ په روایت کښې جمعې ته روښانه شپه او روښانه ورځ ویلے شوېده۔ او خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے۔ چه ماته ستاسو درود پیش شی۔ نو زه به ستاسو د پاره بخښنه غواړم۔ او دعا به کوم۔ او د جمعې د ورځې ډیره فضیلت داد ے۔ چه جمعه د ورځو سردار ده۔ او د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم پاک ذات مبارک د ټولو مخلوقاتو سردار دے۔ ځکه د دے ورځې د درود سره خاص مناسبت دے۔ او بعضې خلق وائی چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د پلار نه د مور مبارکے رحم ته د جمعې په ورځ ورغلے وو۔ علامه سخاوی د ډیرو اصحابو نو مونه او روایتونه د جمعې د درود په باره کښې لیکلی دی۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۴) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَلصَّلٰوةُ عَلَیَّ نُوْرٌ عَلَی الصِّرَاطِ وَمَنْ صَلّٰی عَلَیَّ یَوْمَ الْجُمُعَةِ ثَمَانِیْنَ مَرَّةً غُفِرَتْ لَهٗ ذُنُوْبُ ثَمَانِیْنَ عَامًا (سخاوی)

د ابو هریرهؓ نه روایت دے۔ دا وے۔ چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے چه په ما باندے درود وئیل په صراط باندے د نور سبب دے۔ او چاچه په ما د جمعې په ورځ اتیا کرته درود اووے۔ نو د ده به د اتیا کالو ګناهونه معاف شی۔

فائدہ:- دا حدیث ضعیف دے. خو په دیروطریقو ثابت دے. ځکه دا قسم حدیث په فضائلو کښې معتبر وی. سخاوی دا حدیث د انس رض په روایت هم نقل کړیدے. د ابوهریرة رض په روایت د جمعے په ورځ د مازیګر نه روستو د مانځه نه پس په ناسته چه پاڅی نه او اتیا ګذاره دا درود اووائی. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ وَعَلٰی اٰلِهٖ وَسَلِّمْ تَسْلِیْمًا. نو د ده به اتیا کناهونه معاف شی. او د اتیا کالو د عبادت ثواب به بیا مومی. او د جمعے د ورځے په بل روایت کښ دا درود نقل دے. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ عَبْدِکَ وَنَبِیِّکَ وَرَسُوْلِکَ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ دا د اووائی. او ګوته د بنده کړی. مطلب دا دے چه شمیره د په ګوتو کوی. خو نبی صلی الله علیه وسلم به په ګوتو د شمیرے ترغیب ورکوؤ. ځکه چه دا ګوتے به شهادت کوی مونږ چه په ګوتو په زرګونو ګناهونه کوؤ. او په قیامت کښ به رایا نه دے دا ګوتے ګواهی کوی. نو پکار دی چه په دے ګوتو درود او شمیرو. چه په مونږ د نیکئ شهادت هم اوکړی.

او د حضرت علی رض په روایت کښ د جمعے سل ګذاره درود نقل دے. او د دینه به د قیامت په ورځ دا سے رڼا جوړه شی. چه دا به د ټول مخلوق د پاره کافی وی. او علامه سخاوی د انس رض په روایت لیکی. یو ګذار درود که قبول شه. نو په دے به د ده د اتیا کالو ګناهونه معاف شی. علامه شامی لیکی چه شیخ ابو سلیمان دارانی وائی. چه په ټولو عبادتونو کښ قبول او مردود وی. خو درود شریف صرف قبول وی. په دیکښ رد نه وی. ؎

یَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۵) عَنْ رُوَیْفِعِ بْنِ ثَابِتِ الْاَنْصَارِیِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم د رویفع نه چه د ثابت انصاری ځوئ دے. روایت دے. ده وے چه خوږ نبی علیه السلام وے

مَنْ قَالَ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ اَنْزِلْهُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَكَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَجَبَتْ لَهٗ شَفَاعَتِيْ (ترغیب)

چه څوک دا درود چه "اے لویه خدایه! درود اولیږے او کوځ کړے محمد ﷺ دځان سره په نزدے مقام کښ په ورځ د قیامت" او وائی نو دده دپاره به حما شفاعت واجب شی.

فائده:- دَدے نزدے مقام نه مراد علامه سخاوی دَ وسیلے هغه مقام یا مقام محمود، یا په عرش کښ ناسته اخلی. یا دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم هغه اوچت مقام چه دَ ټولونه په لوړ وی. دَ "مقعد مقرب" معنیٰ په حرز ثمین کښ دَ هغه ځائ مقرب والے هم دے. او دَدے مقام نه کرسی ناسته هم دَه ملا علی قاری دَدے نه مقام محمود مراد اخلی. او بعض ترے دَ جنت نزدے مقام اخلی. چه هغه دَ وسیلے مقام دے. دا مقام په جنت کښ دَ ټولو نه لوئ دے. دا دوه ځایونه دی یو دَ جنت نه بنی امخ ته دے چه په دے ځائ کښ به خوږ نبی صلی الله علیه وسلم شفاعت کوی. او خلق به وائی چه ارمان دے دا مقام موښ ته حاصل وے. او دویم دَ جنت هغه لوړ مقام دے. چه دَدے نه به بره بل مقام نه وی. دَدے مقام ذکر دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په هغه خوب کښ چه دوؤ فرښتو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم بوتلے وو. په بخاری کښ ذکر دے. او په دیکښ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته دَ سود خورو او زنا کارو سزا کانے ښو دلے شوے وے. او دَ عامو مسلمانانو مقام او دَ شهداء مقام اوبیا په وړیځو کښ یو مقام وو چه دا دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم مقام وو. خوږ ښتو او وے. چه ستاسو لاژوند باتے دے. تو تاسو دانه شئ کتے. چه وفات شئ نو دے ته به ځئ.

لږ غور اوکړئ. په مختلفو درودونو دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم شفاعت دَ بنده په لاس راځی. په تاسو که چرته دَ دنیا نوحیداری بیا

دیوانی مقدمه راغلے وی۔ او تاسو ته پته اولګی۔ چه د هغې سړه د فلانکی
داسے تعلق دے۔ چه هغې ته سفارش کوی۔ او دا قبلیګی نو د دے سفارشی
د پاره په څومره منډے، ډالئی تپالئی ورکیدے شی۔ چه د دکا په سفارش
د دے مقدمے نه خلاص شی۔ د دے سفارشی په خوشامندو پیدو نه ستړے
کیږی۔ نو زمونږ د ګناهونو چه څه حال دے۔ هغه خو هر چا ته معلوم
دے۔ ډیر زر حُمونږ د خدائ سخه د دے په پاره کښ پیښی ده۔ او خوږ
نبی صلی الله علیه وسلم سفارش د خدائ سخه قبول دے۔ او دا سفارش
په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په درود حاصلیږی۔ نو د دے د
د پاره کوشش نه کول حُمونږ د خدائ د پیښې نه منل دی۔ هغه څوک
چه د دے نه ویریږی۔ هغه به د لے خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
سفارشی نه جوړه وی۔ چه د قیامت او د قبر د سختو نه پرے خلاص
شی۔ راځئ چه ډیر ډیر درود په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم لیږو۔
چه د دکا شفاعت مونصیب شی۔ وَصَلَّی اللّٰہُ عَلٰی مُحَمَّدٍ اَلْفَ اَلْفَ مَرَّۃٍ۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۷) عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ جَزَی اللّٰہُ عَنَّا مُحَمَّدًا مَا هُوَ اَهْلُهٗ اِتْعَبَ سَبْعِیْنَ کَاتِبًا اَلْفَ صَبَاحٍ۔ (طبرانی)

د ابن عباسؓ نه روایت دے۔ دکا وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے۔ چه چا ماته دُعا اوکړه۔ چه خدایه خوږ نبیؐ ته زمونږ د طرف نه هغه بدله ورکړے۔ د کومے چه دے مستحق دے۔ نو اویا لیکونکی به زر صبا کانے سرګردے په ثواب لیکلو ستړے شی۔

فائده:- او د جابرؓ په روایت کښ دا درود دے۔ چه لیکونکی به زر ورځے د دے ثواب لیکی۔ اَللّٰهُمَّ رَبَّ مُحَمَّدٍ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ وَّاجْزِ مُحَمَّدًا صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَا هُوَ اَهْلُهٗ۔ د زرو ورځو د مشقت دا مطلب دے۔ چه په ثواب

لیکلو ښترے شی. په بعضو روایاتو کښ "دَ کومے بندے چه دے مستحق دے" په ځائ داسے دی. چه کومه بدله ستا دَ شان مناسب وی" لیک دے. نو خدائ درکړه او بیا خپل محبوب ته ورکړه خوشحه حد نه لری.

اوحسن بصریؒ به دا دعا وئیلے وے. چه اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ صَلٰوةً تَكُوْنُ لَكَ رِضًا وَّلِحَقِّهٖ اَدَاءً وَّاَعْطِهِ الْوَسِيْلَةَ وَالْمَقَامَ الْمَحْمُوْدَ الَّذِیْ وَعَدْتَّهٗ وَاجْزِهٖ عَنَّا مَاهُوَ اَهْلُهٗ وَاجْزِهٖ عَنَّا مِنْ اَفْضَلِ مَاجَزَيْتَ نَبِيًّا عَنْ اُمَّتِهٖ وَصَلِّ عَلٰی جَمِيْعِ اِخْوَانِهٖ مِنَ النَّبِيِّيْنَ وَالصَّالِحِيْنَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ - څوک چه دا درود اووه ځلے هره جمعه اووه کرتا اولولی. نو دَ ده دَپاره دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم شفاعت واجب دے. ابن المشتهر نومے یو صاحب دے. هغه وائی چه څوک دَ هرچا نه زیات دَ خدائ حمد وئیل غواړی. چه دغسے چا نه دی وئیلے دَ اول، آخر مقربو ملائکو، دَ اسمان او زمکے دَ مخلوق دحمد نو نه غوره وی. او دغه قسم درود په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وئیل غواړی. او دے وائی. چه ما ته دِ خدائ دَ ټولو سوالکرو دَ سوالونو نه څه حصه راکړی نو هغه دِ داسے اووائی. اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ كَمَا اَنْتَ اَهْلُهٗ فَصَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ كَمَا اَنْتَ اَهْلُهٗ وَافْعَلْ بِنَا مَا اَنْتَ اَهْلُهٗ فَاِنَّكَ اَنْتَ اَهْلُ التَّقْوٰی وَاَهْلُ الْمَغْفِرَةِ.

• اے ربه! ستا دَپاره حمد دے. کوم چه ستا دَ شان مناسب دے. پس ته په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم درود اولیږه. دَ کوم چه ته اهل یې او ځما سره هم ته هغه معامله اوکړه. کومه چه ستا دَ شان مناسب وی. بے شکه ته دَ دے حق لرے. چه ستا نه ویره اوشی. او بخونکے یې.

ابوالفضل قومانی وائی چه ځما سره یو خراسانی راغے او ده راته اووے. چه ما په مدینه کښ په خوب کښ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اولیده نو ما ته دوی اووے. چه ته همدان ته لاړ شے. نو ابوالفضل ته ځما سلام اووایه. ما ورته دا دومره محبت څه رنګ دے؟ دوی

راته اووے۔ چه هغه به ما رونړ انه سل کړاره بلکه د دے نه زیات
دا درود وائی۔ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ وَعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ جَزَى اللّٰهُ مُحَمَّدًا
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنَّا مَا هُوَ اَهْلُهٗ او د دے قسم اوخوړ چه ما مخکښ د دے نه
ته نه بیان ندے۔ ابو الفضل وے ما ده ته څه ورکول اوغوښته۔ نو ده
راته اووے۔ چه زه د خوب نبی صلی الله علیه وسلم په سوال جواب پیسے
نه اخلم۔ ابو الفضل وے۔ بیا ما دا سړے اونه لیده۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۷) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ اَنَّهٗ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا سَمِعْتُمُ الْمُؤَذِّنَ فَقُوْلُوْا مِثْلَ مَا يَقُوْلُ ثُمَّ صَلُّوْا عَلَيَّ فَاِنَّهٗ مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ صَلٰوةً صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ عَشْرًا ثُمَّ سَلُوا اللّٰهَ لِيَ الْوَسِيْلَةَ فَاِنَّهَا مَنْزِلَةٌ فِي الْجَنَّةِ لَا يَنْبَغِيْ اِلَّا لِعَبْدٍ مِّنْ عِبَادِ اللّٰهِ وَاَرْجُوْا اَنْ اَكُوْنَ اَنَا هُوَ فَمَنْ سَاَلَ لِيَ الْوَسِيْلَةَ حَلَّتْ عَلَيْهِ الشَّفَاعَةُ (مسلم)

د عبد الله بن عمرو بن العاص نه روایت دے
ده وے چه خوب نبی صلی الله علیه وسلم
وے۔ چه هرکله تاسو د بانګ ویونکی لفظونه
واورئ۔ نو د ده هسے وایئ۔ بیا په ما درود
اووایئ۔ ځکه چه څوک په ما درود اووائی۔
نو الله په ده لس کړاره رحم کوی۔ بیا زما
د پاره وسیله اوغواړئ۔ دا د جنت داسے
مقام دے۔ چه صرف یو کس ته به ورکیدے
شی۔ او زما امید دے چه هغه به زه یم۔
نو څوک چه دا زما د پاره اوغواړی نو به ده
به زما شفاعت ورکوځ شی۔

فائده:- د کوزید و مطلب واجب کیدہ دی۔ او په بخاری کښ د بانګ نه پس
دا دعا ده۔ اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ آتِ مُحَمَّدَنِ الْوَسِيْلَةَ
وَالْفَضِيْلَةَ وَالدَّرَجَةَ الرَّفِيْعَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَنِ الَّذِيْ وَعَدْتَّهٗ۔ او دا دعا
په خوب نبی صلی الله علیه وسلم بخپله هم وے۔ د وسیلے معنی خوب نبی صلی
الله علیه وسلم د جنت اوچت مقام سبودلے دے۔ وسیله خو بادشاه ته د

دَ نزدے کیدو ذریعه ده. خو دلته تر ے مراد لویه مرتبه ده. او په قرآن کښ وَابْتَغُوْا اِلَیْهِ الْوَسِیْلَةَ ﴿ راغلے دے. دَ دے معنیٰ هم دا هُم خدائے ته نزدے والے لیکی. چه په هغے عمل خدائے رضا شی. په دیکښ دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم توسل حاصلول هم داخل دی. په حصن حصین کښ دَ دعا په آدابو کښ لیکی. وَ اَنْ یَّتَوَسَّلَ اِلَی اللّٰهِ بِاَنْبِیَائِهٖ وَالصَّالِحِیْنَ مِنْ عِبَادِهٖ ﴿ دَ پیغمبرانو او نیکانو په ذریعه خدائے پاک ته رسیده، او دَ الله محبوب جوړیده دا علامه سخاوی دَ وسیلے معنیٰ لیکی. فضیلت هغه لویه مرتبه ده چه دَ ټول مخلوق نه به اوچته وی. او دَ مقام محمود په باره کښ عَسٰی اَنْ یَّبْعَثَکَ رَبُّکَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا راغلے دے. " امید دے چه تا به خدائے پاک مقامِ محمود ته اورسوی" د " محمود" نه مراد په امت گواهی ده. یا دَ قیامت ورځ. دَ " حمد" جهنډه ده. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته به ورکړے شی. بعض وائی. چه خدائے پاک به خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په عرش یا کرسی کینوی. بعض ترے شفاعت مراد اخلی. دا هغه مقام دے. چه ټول مخلوق به دَ دے تعریف کوی. دا ټول احتمالات صحیح دی.

کعب بن مالکؓ وائی. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه خلق راژوندی کړے شی. نو ما ته به شنه جوړه وا غستولے شی. بیا به ځه هغه څه اووایم. چه څه خدائے په ما وائی. او مقام محمود دَ دے ټولو ځیزونو نوم دے. چه په دے وخت کښ به دوی ته پیښ شی. دا هغه دَ شفاعت دَ اوگد حدیث ټکړه ده. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم به په سجده پریوځی. او ترڅو چه خدائے غواړی دے به پروت وی. بیا به خدائے حکم اوکړی. چه سر پورته کړه. وایه ستا به اوریدے شی سفارش به دِ قبلیږی. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه زه به

سره اپوره ته کړم. بیا به زه حمد وثنا اووایم. کومه به چه په د غه وخت کښې خدائ ما ته اوښئ. بیا به د خپل امت د پاره سفارش اوکړم.

(شعر) وایه وایه اجازت د ے ؛ راشه بن ستا لوئ عزت د ے
د امت که شفاعت د ے ؛ دا یے شکه ستا دولت د ے!

په د ے دعا کښې وَالدَّرَجَةَ الرَّفِيْعَةَ هم روایت کښې شته او اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَاد په حصن حصین کښې هم شته.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا ؛ عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۸) عَنْ اَبِيْ اُسَيْدِ السَّاعِدِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ اَحَدُكُمْ فِي الْمَسْجِدِ فَلْيُسَلِّمْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ لِيَقُلِ اللّٰهُمَّ افْتَحْ لِيْ اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَاِذَا خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَلْيُسَلِّمْ عَلَى النَّبِيِّ صلی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ لِيَقُلِ اللّٰهُمَّ افْتَحْ لِيْ اَبْوَابَ فَضْلِكَ (ابوداؤد)

د ابی اسید نه روایت د ے. دا و ے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم و ے چه هر کله تاسو کښې یو کس جمات ته داخلیږی نو په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دِ سلام وائی. بیا دِ او وائی چه اے الله ما ته د رحمت دروازے پرانځے او چه پاهر ځی د جمات نه بیا دِ په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم سلام اوکړی بیا دِ او وائی. چه اے خدایه ما ته د فضل دروازے پرانځے.

فائده:- جمات ته خو د عبادت د پاره ځی. نو د ے د خدائ رحمت ته محتاج د ے. چه دا ته د عبادت توفیق ورکړی. او دا خدائ قبول کړی. د رحمت دروازے د جمات د برکتی ځکے په وجه پرانستے شی. یادِ وائی. چه په ما د مونځ حقائق پرانځے. او د جمات نه پاهر د رزق د طلب د پاره ځی. نو د ے د خدائ نه رزق غواړی. لکه په سورة جمعه کښې وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ کښې د فضل نه مراد رزق د ے. او فاطمه بی بی وائی. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم به په خپله جمات ته داخلیده نو دوی به په ځان

درود او سلام وے۔ او بیا به ییے وے اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ ذُنُوْبِیْ وَافْتَحْ لِیْ اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ او د غسے به ییے په وتو کښ درود سلام او وَافْتَحْ لِیْ اَبْوَابَ فَضْلِکَ وے۔ او حضرت انس رض وائی چه د داخلے په وخت کښ به ییے بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وے او د وتو په وخت کښ به ییے هم د غسے وے۔ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم حضرت حسن رض ته د داخلے دعا ښودلے وه۔ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ ذُنُوْبَنَا وَافْتَحْ لَنَا اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ او په باهر کښ اَبْوَابَ فَضْلِکَ دے۔ او د ابوهریره رض په روایت کښ د وتو دعا ده۔ اَللّٰهُمَّ اعْصِمْنِیْ مِنَ الشَّیْطَانِ الرَّجِیْمِ ٥ یا د وتو په وخت کښ وَاحْفَظْنِیْ مِنَ الشَّیْطَانِ الرَّجِیْمِ ۔ دے۔ او په دے شیطان اُوائی چه دا بنده خو ز الله تر ما بیامه بچ شه۔

او د داخلے په مختلفو روایاتو کښ مختلفے دعاگانے دی۔ لکه بِسْمِ اللهِ وَالسَّلَامُ عَلٰی رَسُوْلِ اللهِ وَعَلٰی سُنَّةِ رَسُوْلِ اللهِ۔ یا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ او چه حجرات ته داخل شی نو دا سے دِ وائی۔ اَلسَّلَامُ عَلَیْنَا وَعَلٰی عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِیْنَ

یَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا ٭ عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۹) " دا سے به کوم مسلمان دی چه د هغه زړه دا نه غواړی چه ما خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښ اولیدے۔ خو دا خواهش د عشق او محبت په مرتبو کښ کم زیات وی۔

د دے په باره کښ عاشقان رسول په مختلفو عملونو او ورودونو تجربے کړیدی۔ او د دوی د زیادت په خوب کښ نصیب شوے دے۔ تو د ے چه علامه سخاوی په قول بدیع کښ د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم خپل فرمان نقل کړیدے۔ چه څوک صَلِّ عَلٰی رُوْحِ مُحَمَّدٍ فِی الْاَرْوَاحِ وَعَلٰی جَسَدِهٖ فِی الْاَجْسَادِ وَعَلٰی قَبْرِهٖ فِی الْقُبُوْرِ وائی۔ نو هغه به ما په خوب کښ اووینی۔ او چه څوک ما په خوب کښ اووینی نو هغه به ما په قیامت کښ اووینی۔ او چه څوک ما په قیامت

کښې اووېنې. نو څه به د دغه سفارش اوکړم. او چه د جازه سفارش اوکړم نو هغه به څما د حوض کوثر نه اوبه اوڅکی. او خدائ به د دغه وجود په دوزخ حرام کړی. او بل ځائ وائی چه دا درود نا تکئ وائی. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ كَمَا اَمَرْتَنَا اَنْ نُّصَلِّيَ عَلَيْهِ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ كَمَا هُوَ اَهْلُهٗ. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ كَمَا تُحِبُّ وَتَرْضٰى او په دے دغه برنے درود زیاتی هم وائی.

شیخ عبدالحق محدث دهلوی په کتاب ترغیب اهل السعادات کښې لیکی. چه څوک د جمعے په شپه دوه رکعته نفل اوکړی. او په هر رکعت کښې یو ولس کرته آیتُ الکرسی او یو ولس کرته قُلْ هُوَاللهُ اَحَدٌ او د سلام نه پس سل کرته درود اووائی. نو د هغے جمعے به نه وی تیرے شوے. چه زیارت به یے نصیب شی. او هغه درود دا دے اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدِنِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ وَآلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَسَلِّمْ. او بل لیکی چه څوک دوه رکعته نفل اوکړی. او په هر رکعت کښې د الحمد نه پس پنځویشت کرته قُلْ هُوَاللهُ اَحَد او د سلام نه پس دا درود زر کرته اووائی. نو زیارت به یے نصیب شی. درود دا دے. صَلَّى اللهُ عَلَى النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ او دریمه طریقه لیکی چه اویا کرته دا درود اووائی. نو زیارت به یے نصیب شی. درود دا دے. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ بَحْرِ اَنْوَارِكَ وَمَعْدِنِ اَسْرَارِكَ وَلِسَانِ حُجَّتِكَ وَعَرُوْسِ مَمْلَكَتِكَ وَاِمَامِ حَضْرَتِكَ وَطِرَازِ مُلْكِكَ وَخَزَائِنِ رَحْمَتِكَ وَطَرِيْقِ شَرِيْعَتِكَ الْمُتَلَذِّذِ بِتَوْحِيْدِكَ اِنْسَانِ عَيْنِ الْمَوْجُوْدِ وَالسَّبَبِ فِيْ كُلِّ مَوْجُوْدٍ عَيْنِ اَعْيَانِ خَلْقِكَ الْمُتَقَدِّمِ مِنْ نُّوْرِ ضِيَائِكَ صَلٰوةً تَدُوْمُ بِدَوَامِكَ وَتَبْقٰى بِبَقَائِكَ لَا مُنْتَهٰى لَهَا دُوْنَ عِلْمِكَ صَلٰوةً تُرْضِيْكَ وَتُرْضِيْهِ وَتَرْضٰى بِهَا عَنَّا يَا رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ

او دا درود هم شیخ عبدالحق صاحب د خوب نه مخکښې د زیارت ذریعه ښودلے دے. اَللّٰهُمَّ رَبَّ الْحِلِّ وَالْحَرَامِ وَرَبَّ الْبَيْتِ الْحَرَامِ وَرَبَّ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ اَبْلِغْ لِرُوْحِ سَيِّدِنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدٍ مِنَّا السَّلَامَ.

خو د دے دولت د حصول لوئ شرط د زړه د شوق نه پکید کادی او شکاره او پټو گناهونو نه بچ کیده دی.

حضرت شاه ولی الله صاحب مرحوم په خپل نوادر کتاب کښ د حضرت خضر نه ډیر اعمال د ابدالو په ذریعه نقل کړیدی په محمد ثانه رنگ کښ دا خبره کمزورے ده. خو صرف زیری دی نو څه حرج پکښ نشته چه ذکرشی یو ابدال حضرت خضر ته اووے. چه ما ته څه عمل اوښایه چه زه یئ د شپے کوم. ده ورته اووے. چه د ماښام نه تر ماسخوتنه په نفلو ارم یه. د چا سره خبرے مه کوه. او په دوو رکعتو نو سلام گرځوه. او په هر رکعت کښ یو کرار اَلْحَمْدُ او درے کرار قُلْ هُوَاللّٰه وایه او د ماسخوتن نه پس چه کور ته لاړشه. نو دوه رکعته نفل اوکړه. په دیکښ یو کرار اَلْحَمْدُ او اووه کرار قُلْ هُوَ اللّٰه اووایه. چه سلام او گرځوے نو یوه سجده اوکړه او په دے کښ اووه کرار استغفار او اووه کرار درود او اووه کرار دا کلمه سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ او بیا سر پورته کړه. او د دعا د پاره لاس پورته کړه. او دا دعا اووایه. یَا حَیُّ یَا قَیُّوْمُ یَا ذَا الْجَلَالِ وَالْاِکْرَامِ یَا رَبُّ یَا اَللّٰهُ یَا اَللّٰهُ یَا اَللّٰهُ بیا اودریږه او بیا دعا اووایه. بیا په ښی اړخ څخ په قبله سمله. او تر اوده کیدو درود شریف وایه. څوک چه پرله پسے په یقین او نیک نیتئ دا عمل کوی. نو د مرگ نه مخکښ به خوب نبی صلی الله علیه وسلم ضرور او وینی. چاچه دا عمل کړیدے. هغوی جنت ته تلی دی. او دغلته یئ د خوب نبی صلی الله علیه وسلم او د پیغمبرانو ملاقات کړیدے. او په حیٰوة الحیوان د علامه دمیری کښ لیکلی دی. چه څوک د جمعے په ورځ د جمعے د مانځه نه پس په اودس کښ په یو کاغذ پنځه دیرش کرار مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ اَحْمَدُ رَسُوْلُ اللّٰهِ او لیکی او د ځان سره یئ کیدی. نو د طاعت طاقت به بیا مومی. او د

شیطان د وسوسو نه به بچ وی. او چه د سحر تو په وخت کښې دیته کوری او درود د وائی. نو د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم زیارت به ورته په خوب کښې ډیر کیږی.

تنبیه :- د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښې لیدلو ډیره لویه نیک بختی ده. او ډیر لوئ دولت دے. لکه چه حضرت تهانوئ لیکلی دی. او دا شرف په کسب نه حاصلیږی دا خالص د خدائ په بخښه کیږی. (شعر)

دا نیکی په زور د متو موندے نشی ⁂ چه تر څو یے رب بخښلے نه بخی!

په زړګونو په دے عشق کښې ختم شو. خو ډیر ګڼ اړه په ډیر درود ویلو او د ډیر محبت په وجه دا دیدار حاصلیږی. ولے دا ضروری خبره نه ده لکه چا دیدن او نه کړو نو دے د غمژن کیږی نه. کله کله په دیکښې هم حکمت او رحمت وی. د عاشق خو د محبوب د رضا سره کار وی. که وصال وی او که هجر وی. او څه ډیر سنه یو شاعر ویلی دی. (شعر)

زه خو غواړم چه وصال د یار م اوشی ⁂ خو ورپاتے اراده م د یار نه ده !

په رضا د ده وصال او فراق پرېکړه ⁂ بس نه غواړه هغه څیز چه د ده خوښ وی

او که د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښې دیدن او شی. او د ده رضا او د ده تابعداری نصیب نه شی. نو دا فقط دیدن کافی نه دے. ته نه ګورے د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم هره ورځ لیدونکی کافران نه لیدونکی وو. او نه لیدونکے اویس قرنی لیدونکے وو. اویس قرنی د مور د خدمت په وجه د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دیدن ته نه وو ورغلے. او خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د ده ذکرا صحابو ته کړے وو. او دوی ته یے ویلی وو چه د ده نه د ځان د پاره د عا کانے او غواړئ. او خوږ نبی صلی الله علیه وسلم حضرت عمرؓ ته ویلی وو. چه که ده په یوه خبره قسم او خوړ. نو خدائ پاک به ضرور دا پوره کړی. او عمرؓ ته یے او وے. چه د ځان د پاره د ده نه دعا او غواړه.

(شعر) ږ اویس قرنی چه لرے خو نږدے وو ٭ ابوجهل وو نږدے خو ږ ډیر لرے

بل دا پوهه شئ چه که چا خوب کښ نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښ اولیده نو دا یقیناً خوب کښ نبی صلی الله علیه وسلم دے. ځکه چه شیطان د خوب کښ نبی صلی الله علیه وسلم په شکل په خوب کښ نه شی راتلے. خو که خوب کښ نبی صلی الله علیه وسلم یې په خوب کښ په داسے شکل اولیده چه دغه شکل د خوب کښ نبی صلی الله علیه وسلم د شان مناسب نه وی. نو دا به د لیدونکی کمے وی. د دے لیدونکی مثال د مختلف رنګونو چشمو په سترګو کیخودونکو دے. چه څه رنګ چشمه لرے هغے به څیز وینے. تور، شین، سور، وغیره، که په نوی تمام پیسی کښ په اوږ دطرف کښ اوګورے نو ستا مخ به ډیر اوږد ید رنګ ښکاره شی. او که ته وراته په پلنو اوګورے. نو ډیر پلن مخ به اووینے. او په ځان پورے به اوخاندے. د غسے که خوب کښ نبی صلی الله علیه وسلم درته د شریعت نه خلاف خبره اوکړه. نو په دے عمل مه کوه. دا قسم حکم یو قسم زور نه وی. لکه کله مونږ خپل اولاد ته وایو. "سبه دا ته چلیم سکه ګوره به". او د خوبونو تعبیر یو مستقل علم دے. لکه یو کس خوب اولیده. چه یوه فرښته دا او دکا ته وائی. چه ستا ښځه ستا د دوست په ذریعه تاته زهر درکوی. نو یو عالم ورته د دے دا جواب ورکړو. چه ستا دوست ستا د ښځے سره زنا کوی. د دغه قسم وینا په مظاهرِ حق کښ نعم ښکلے ده. ګویا که په ښه شکل کښ خوب کښ نبی صلی الله علیه وسلم اولیدے شه. نو دا د خوب د لیدونکی د دیندارئ نخه ده. او که د دے خلاف یې اولیده نو دا د ده د ید دینئ نقصان دے نو معلومه شوه چه د خوب کښ نبی صلی الله علیه وسلم لیده په هر رنګ کښ چه وی دا د دے خوب لیدونکی د حال د پاره یو ګواه دے. چه دے دیندار یا ید دینه دے. او چه بنده ته خپله ید دینی معلومه شی

نو پکار دی چه دے خپله اصلاح اوکړی۔ د عیسے که خوب نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښ څه ناحق فرمان اوکړو۔ نو دا فرمان به په سنت نبوی کښ کتے شی۔ که دَ دے برابر وو نو حق دے کنې ناحق دے۔ او کله کله دا دَ اوریدو فرق وی۔ شیخ علی متقی دَ یو مغربي فقیر خوب لیکی۔ چه ده ته په خوب کښ خوب نبی صلی الله علیه وسلم اووے چه شراب څکه. علمار دَ دے جوابونه اوکړه۔ او دَ مدینے منورے یو مفتی محمد عرات چه دَ سنتو سخت تابعدار وو۔ ده اووے۔ چه خوب نبی صلی الله علیه وسلم ده ته لَا تَشْرَبِ الْخَمْرَ ویلي دے۔ چه شراب مه سکه خو دَ ده غوږونو غلط اوریدلی دی۔ او که دَ دے هغه برنے جواب شی۔ لکه مولانا چه مخکښ لیکلی دو۔ چه دا اِشْرَبِ الْخَمْرَ دے۔ چه کنے شراب څکه. خو دا اوره نه ده۔ چه ته شراب څکه خو کوروبه۔ نو دا هم کیدے شی۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا  عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۱۰) حضرت تهانوئ په زادالسعید کښ دَ درود او دَ سلام څلویښت احادیث لیکلی دی۔ او دائے بیا په نشر الطیب کښ په لږ کمی زیاتی نقل کړیدی۔ نو زه هم دَ برکت دَ پاره دا په دے رساله کښ لیکم۔ دَ دے نمونه دلائل الخیرات دے۔ زه دَ صلوٰة او سلام هغه صیغے لیکم۔ چه کومے دَ مرفوع احادیثُ نه حقیقتًا یا حُکمًا ثابتے دی۔ په دے څلویښتو کښ پنځو یشت دَ صلوٰة متعلق او پنځلس دَ سلام متعلق دی۔ خوب نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی۔ چه چا حمًا څلویښت احادیث حمًا امت ته اورسوُل نو دَ ده حشر به دَ علمار په ټولګی کښ اوشی۔ او زه به دَ ده شفاعت اوکړم۔ نو دَ دے احادیثو په جمع کښ برعون ثواب حکه دے۔ چه دَ دے درود خدائے حکم کړیدے۔ او که یو کس دَ دے څلویښتو احادیثو روزانه وظیفه کوی۔ نو دَ هر یو دَ ثواب به مستحق ګرځي۔

صیغۂ قرآنی :- ۱

سَلٰامٌ عَلٰی عِبَادِہِ الَّذِیْنَ اصْطَفٰی — سلام دِ نازل شی پہ چونړو بندګانو دَخدائ

۲ سَلٰامٌ عَلَی الْمُرْسَلِیْنَ ہ — سلام دِ وی پہ رسولانو باندے۔

## تخلویبت احادیث چہ صلوٰۃ او سلام پکښِ موجود دی

## دَصلوٰۃ صیغ :-

(۱) اَللّٰھُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ وَّ اَنْزِلْہُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَکَ — اے خدایہ! پہ محمدؐ او پہ اولاد دَمحمد درود نازل کړہ او تہ دَے داسے ځکونړے تہ بوځہ - چہ تا تہ ډیرہ نزدے دی۔

(۲) اَللّٰھُمَّ رَبَّ ھٰذِہِ الدَّعْوَۃِ الْقَائِمَۃِ وَالصَّلٰوۃِ النَّافِعَۃِ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّ اَرْضَ عَنِّیْ رِضًا لَّاتَسْخَطُ بَعْدَہٗ اَبَدًا ہ — اے دَدے دعا او مونځ تر قیامتہ قائمہ مند کرزو نکیہ خدایہ! درود نازل کړے پہ محمدؐ او ځما نہ داسے رضا شے چہ بیا رانہ هیڅ کلہ خفہ نہ شے۔

(۳) اَللّٰھُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ عَبْدِکَ وَرَسُوْلِکَ وَصَلِّ عَلَی الْمُؤْمِنِیْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِیْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ — اے اللہ درود نازل کړے ځمونږ پہ سردار محمدؐ چہ بندہ ستا او رسول ستا دے۔ او پہ مومنانو سړو او ښځو او پہ مسلمانانو سړو او ښځو درود نازل کړہ۔

(۴) اَللّٰھُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ وَبَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ وَارْحَمْ مُحَمَّدًا وَّ آلَ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّیْتَ وَبَارَکْتَ عَلٰی اِبْرَاھِیْمَ وَعَلٰی آلِ اِبْرَاھِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ ہ — اے اللہ! درود اولیږہ پہ محمدؐ او پہ اولاد دَ محمدؐ او برکت نازل کړہ پہ محمد او پہ آل دَ محمدؐ او رحم اوکړہ پہ محمدؐ او پہ آل دَ محمد باندے لکہ چہ تا درود لیږلے وو او برکت دِ کړے وو پہ ابراهیم او پہ اولاد دَ ابراهیم۔ بے شکہ تہ ستائیلے شوے لوئ یې۔

(۵) اَللّٰھُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰی آلِ — اے اللہ درود نازل کړہ پہ سردار محمدؐ او پہ آل

مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى آلِ اِبْرَاهِيْمَ
اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى
مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى
آلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ط

دَ دَه - لکه چه تا درود نازل کړے وو - په آل
دَ ابراهیم بے شکه ته ستا ئیلے شوے لوئ یے
اے الله برکت نازل کړے په محمّد او په آل دَ دَه
لکه چه تا برکت نازل کړے وو په آل دَ ابراهیم
بے شکه ته ستا ئیلے شوے لوئ یے۔

(۶) په دیکښ صرف دَ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ په ځائ وَبَارِكْ دے نور فرق پکښ نشته۔

(۷) په دیکښ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ دے۔

(۸) وَبَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ دے۔

(۹) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ
كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَبَارِكْ عَلٰى
مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى
اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ط

اے الله په محمّد او په آل دَ محمّد دا سے درود
نازل کړے لکه چه تا په ابراهیم نازل کړے وو
او برکت او کړه په محمّد او په آل دَ محمّد لکه چه
برکت دِ کړے وو په ابراهیم بے شکه ته ستا ئیلے
شوے لوئ یے۔

(۱۰) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى آلِ
مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ
حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ - اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى
مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ
عَلٰى آلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ۔

اے الله درود اولیږه په محمّد او په آل دَ
محمّد لکه چه درود دِ لیږلے وو په ابراهیم
بے شکه ته ستا ئیلے شوے لوئ یے۔ اے الله
برکت نازل کړے په محمّد او په آل دَ محمّد لکه چه
تا برکت نازل کړے وو په آل دَ ابراهیم بے شکه
ته ستا ئیلے شوے لوئ یے۔

(۱۱) دا پسے دَ دے لسم په شان دے۔ خو په آخر کښ وَعَلٰى آلِ اِبْرَاهِيْمَ فِي الْعَالَمِيْنَ دے۔

(۱۲) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ اَزْوَاجِهٖ
وَ ذُرِّيَّتِهٖ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى آلِ اِبْرَاهِيْمَ
وَبَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ اَزْوَاجِهٖ وَ ذُرِّيَّتِهٖ

اے الله درود اولیږه په محمّد او په بیبیانو دَ دَه
او په اولاد دَ دَه لکه چه درود دِ لیږلے وو په

كَمَا بَارَكْتَ عَلَىٰ آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ ۔

اولاد دَ ابراهيم او برکت نازل کړه په محمد او په ښځو د ده . لکه چه برکت دې نازل کړی وو په اولاد دَ ابراهيم بے شکه ته ستائيلے شوے لوئ يې .

(۱۳) په دے کښ په دواړو ځايه کښ دَ اَزْوَاجِه په ځائ دَ عَلیٰ اَزْوَاجِهٖ دے نور هم دغه برنے دے .

(۱۴) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلىٰ مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ وَاَزْوَاجِهٖ وَ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَذُرِّيَّتِهٖ وَاَهْلِ بَيْتِهٖ كَمَا صَلَّيْتَ عَلىٰ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ۔

اے الله درود اولیږه په محمد چه نبي امي دے . او په ښځو د ده چه د مؤمنانو میندے دی او په اولاد دَ ده او په کورنئ دَ ده لکه چه درود دې لیږلے وو . په ابراهيم بے شکه ته ستائيلے شوے يې .

(۱۵) ورپسے دغه ځمونږ دَ مانځه درود دے . خو دا زیاتے دے . چه وَتَرَحَّمْ عَلىٰ مُحَمَّدٍ وَّ عَلىٰ آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا تَرَحَّمْتَ عَلىٰ اِبْرَاهِيْمَ وَ عَلىٰ آلِ اِبْرَاهِيْمَ ۔

(۱۶) په دیکښ اَللّٰهُمَّ تَرَحَّمْ دے . او بیا ورپسے اَللّٰهُمَّ تَحَنَّنْ عَلىٰ مُحَمَّدٍ وَّ عَلىٰ آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا تَحَنَّنْتَ عَلىٰ اِبْرَاهِيْمَ وَ عَلىٰ آلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ۔ اَللّٰهُمَّ سَلِّمْ عَلىٰ مُحَمَّدٍ كَمَا سَلَّمْتَ عَلىٰ اِبْرَاهِيْمَ وَ عَلىٰ آلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ۔

(۱۷) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلىٰ مُحَمَّدٍ وَّ عَلىٰ آلِ مُحَمَّدٍ وَبَارِكْ وَسَلِّمْ عَلىٰ مُحَمَّدٍ وَّ عَلىٰ آلِ مُحَمَّدٍ وَارْحَمْ مُحَمَّدًا وَّ آلَ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ وَ بَارَكْتَ وَتَرَحَّمْتَ عَلىٰ اِبْرَاهِيْمَ فِي الْعَالَمِيْنَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ۔

اے الله درود اولیږه . په محمد او په آل دَ محمد او برکت نازل کړه او سلامتیا په محمد او په آل دَ محمد او رحم اوکړه په محمد او په آل دَ محمد لکه چه درود دې لیږلے وو او برکت دې لیږلے وو او رحمت دې کړے وو په عالموکښ ته ستائيلے شوے لوئ يې .

(۱۸) زمونږ دَ تشهد درود دے .

(۱۹) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلىٰ مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَ رَسُوْلِكَ كَمَا صَلَّيْتَ عَلىٰ اِبْرَاهِيْمَ وَ بَارِكْ عَلىٰ مُحَمَّدٍ

اے الله درود اولیږه په محمد چه بنده ستا او رسول ستا دے . لکه چه درود دې لیږلے وو

وَعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی آلِ اِبْرَاهِیْمَ

په اولاد د ابراهیم او برکت اولیږه په محمد او په آل د محمد لکه برکت چه د لیږلے وو په اولاد د ابراهیم بانده ـ

(۲۰) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدِنِ النَّبِیِّ الْاُمِّیِّ وَعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّیْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَبَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدِنِ النَّبِیِّ الْاُمِّیِّ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ ۔

اے الله درود اولیږه په محمد نبی امی او په اولاد د محمد لکه چه درود د لیږلے وو په ابراهیم او برکت اولیږه په محمد نبی امی لکه چه برکت د لیږلے وو په ابراهیم بے شکه ته ستائیلے شوے یې ۔

(۲۱) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ عَبْدِکَ وَرَسُوْلِکَ النَّبِیِّ الْاُمِّیِّ وَعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ صَلٰوۃً تَکُوْنُ لَکَ رِضًی وَّلَهٗ جَزَاءً وَّلِحَقِّهٖ اَدَاءً وَاَعْطِهِ الْوَسِیْلَةَ وَالْفَضِیْلَةَ وَالْمَقَامَ الْمَحْمُوْدَ الَّذِیْ وَعَدْتَّهٗ وَاجْزِهٖ عَنَّا مَا هُوَ اَهْلُهٗ وَاجْزِهٖ اَفْضَلَ مَا جَزَیْتَ نَبِیًّا عَنْ قَوْمِهٖ وَرَسُوْلًا عَنْ اُمَّتِهٖ وَصَلِّ عَلٰی جَمِیْعِ اِخْوَانِهٖ مِنَ النَّبِیِّیْنَ وَالصّٰلِحِیْنَ یَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِیْنَ ۝

اے الله درود اولیږه په محمد چه بنده ستا او رسول ستا دے. نبی دے امی دے. او په اولاد د محمد اے الله درود اولیږه په محمد او په اولاد د محمد داسے درود چه ستا د رضا ذریعه وی او د خوږ نبی پوره بدله وی. او د دوی د حق ادائیګی وی. او ورکړے ده ته وسیله. فضیلت او مقام محمود د کوم چه ورسره ستا وعده ده. او دوی ته حُموږ د طرفه داسے بدله ورکړے د کوم چه دے اهل دے. او دوی ته هغه غوره بدله ورکړے. چه یو نبی ته د د قوم د طرفه ورکړے ده. او یو رسول ته د ده د امت د طرف نه او د خوږ نبی په ټولو رونړو پیغمبرانو اے ارحم الراحمین درود اولیږه .

(۲۲) شلم درود او دا یو شان دی. خو په دیکښ وَعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ او عَلٰی آلِ اِبْرَاهِیْمَ زیات دے.

(۲۳) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اَهْلِ بَیْتِهٖ کَمَا صَلَّیْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَیْنَا مَعَهُمْ اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اَهْلِ بَیْتِهٖ

اے الله درود اولیږه په محمد او په کورنئ د ده لکه چه درود د لیږلے وو په ابراهیم بے شکه ته ستائیلے شوے لوئ یې. اے الله درود اولیږه په مونږ د سره د دوی نه اے الله الله برکت

كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ۝ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلَيْنَا مَعَهُمْ صَلَوٰاتُ اللّٰهِ وَصَلَوٰةُ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى مُحَمَّدِ نِ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ

او کړه . په محمد او په کورنئ د ده . لکه چه برکت دِ کړے وو په ابراهیم بیشکه ته ستائیلے شوے لوئ یئے . اے الله برکت او لیږه په موږ سره د دوی نه ډیر درودونه د خدائ او د مؤمنانو په محمد نبی امی باندے .

(۲۴) اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ صَلَوٰتَكَ وَرَحْمَتَكَ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّآلِ مُحَمَّدٍ كَمَا جَعَلْتَهَا عَلٰى إِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ۔ وَبَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى إِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ۔

اے الله درودونه او رحمتونه او برکتونه اولیږه په محمد او په آل د محمد لکه چه تا کړزولے وو په آل د ابراهیم بیشکه ته ستائیلے شوے لوئ یئے . او برکت اولیږه په محمد او په آل د محمد لکه چه برکت کړے وو تا په ابراهیم او په آل د ابراهیم بیشکه ته ستائیلے شوے لوئ یئے

(۲۵) وَصَلَّى اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ

او اے الله درود اولیږه په نبی امی باندے

## صیغ السلام

(۲۷) ځمونږ دا التحیات چه السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ پکښ دے .

(۲۷) اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ الطَّيِّبَاتُ الصَّلَوٰةُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ ۔ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ ۔

ټول قولی او مالی او بدنی عبادات د خدائ دپاره دی . سلام دِ وی په تا اے خوږه نبی ! او د خدائ رحمتونه او برکتونه دِ وی سلام دِ وی په موږ او په نیکانو بندګانو . زه ګواهی کوم چه الله تعالی یکی یو او محمد یئے بنده او رسول دے .

(۲۹) اَلتَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوٰةُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ سَلَامٌ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ

ټول برکتی قولی بدنی او مالی عبادات د الله دپاره دی سلام دِ وی په تا باندے اے نبی !

(۳۰) بِسْمِ اللهِ وَ بِاللهِ التَّحِیَّاتُ لِلّٰهِ وَ الصَّلَوٰتُ وَ الطَّیِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ اَیُّهَا النَّبِیُّ۔

دَ الله په نوم شروع کوم او دَ الله په توفیق شروع کوم ټول عبادات قولی بدنی، مالی دَ الله دَ پاره دی. سلام دِ وی په تا باندے اے خوږه نبی!

(۳۱) اَلتَّحِیَّاتُ الزَّاکِیَاتُ لِلّٰهِ الطَّیِّبَاتُ الصَّلَوٰتُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ اَیُّهَا النَّبِیُّ

پاک عبادات قولی مالی او بدنی دَ الله دَ پاره دی. سلام دِ وی په تا باندے اے خوږه نبی!

(۳۲) بِسْمِ اللهِ وَ بِاللهِ خَیْرِ الْاَسْمَآءِ اَلتَّحِیَّاتُ الطَّیِّبَاتُ الصَّلَوٰتُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ اَیُّهَا النَّبِیُّ۔

دَ الله په نوم شروع کوم او دَ الله په توفیق چه دَ ټولو نومونو نه غوره دے قولی، مالی، بدنی عبادات دَ الله دَ پاره دی. سلام دِ وی په تا اے نبی!

(۳۳) اَلتَّحِیَّاتُ الطَّیِّبَاتُ وَ الصَّلَوٰةُ وَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ اَیُّهَا النَّبِیُّ۔

ټول قولی مالی او بدنی عبادات او باچائی دَ الله دَ پاره ده. سلام دِ وی په تا اے نبی.

(۳۴) بِسْمِ اللهِ التَّحِیَّاتُ لِلّٰهِ الصَّلَوٰةُ لِلّٰهِ الزَّاکِیَاتُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَی النَّبِیِّیْنَ۔

دَ الله په نوم شروع کوم. ټول قولی عبادات ټول بدنی پاک عبادات دَ الله دَ پاره دی. سلام دِ وی په ټولو پیغمبرانو.

(۳۵) اَلتَّحِیَّاتُ الطَّیِّبَاتُ الصَّلَوٰتُ الزَّاکِیَاتُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ اَیُّهَا النَّبِیُّ۔

ټول قولی عبادات مالی عبادات بدنی عبادات او ټولے پاکئ دَ الله دَ پاره دی. سلام دِ وی په تا اے نبی!

(۳۶) اَلتَّحِیَّاتُ الطَّیِّبَاتُ الصَّلَوٰتُ الزَّاکِیَاتُ لِلّٰهِ۔ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ اَیُّهَا النَّبِیُّ۔

ټول قولی، مالی او بدنی عبادات او ټولے پاکئ دَ الله دَ پاره دی. سلام دِ وی په تا اے نبی!

(۳۷) اَلتَّحِیَّاتُ الصَّلَوٰةُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ اَیُّهَا النَّبِیُّ۔

ټول قولی او بدنی عبادات دَ خدائ دَ پاره دی. سلام دِ وی په تا اے نبی!

(۳۸) اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ الصَّلَوٰتُ الطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ ۔

ټول قولی عبادتونه او بدنی او مالی عبادتونه د الله د پاره دی۔ سلام دِ وی په تا اے نبی!

(۳۹) اَلتَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوٰتُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ ۔

ټول برکتی عبادات قولی عبادات بدنی او مالی عبادات د الله د پاره دی۔ سلام دِ وی په تا اے نبی!

**تکمله:-** علامه سخاوی په قولِ بدیع کښ د دے درودونو په باره کښ یو باب لیکلے دے۔ او د دے ځائ خاص وختونه لیکلی دی! دا د اودس او د تیمم نه په اوزګاریدو او د جنابت او د حیض نه په اوزګاریدو۔ په مانځه کښ او د مانځه نه پس۔ او د مانځه د اودس یدو په وخت کښ۔ د سحر او د ماښام نه پس او د التحیات نه پس او د قنوت نه پس او د تهجد و د پاره د اودریدو په وخت کښ د غه قسم ډیر تفصیلات دی۔ خو دومره ده۔ چه علامه سخاوی شافعی مذهب لری۔ نو دا موقعے د شوافعو په نزد دی۔ بوځو موقعے د احنافو په نزد مستحب نه دی۔ بلکه مکروه دی۔ علماء صفا لیکی۔ چه د جمعے په شپه او ورځ او د خالی۔ اتبار۔ زیارت او سحر ماښام د جمات په داخله او وتو۔ او د خوږ نبیؐ د دوضے مبارک د زیارت په وخت کښ او په صفا مروی باندے۔ او د جمعے په خطبه کښ۔ د بانګ د جواب نه پس۔ د تکبیر په وخت کښ او د دعا په شروع کښ په مینځ او آخر کښ او د دعاء قنوت نه پس او د لبیک نه پس او د جمع مجلس په کیناستو او خوریدو کښ د اودس په وخت کښ۔ د یو څیز د هیریدو په وخت کښ، د وعظ په وخت کښ د علومو د خورولو په وخت کښ او د احادیثو د لوستو په اول کښ او په آخر کښ د استفتاء او د فتوے د لیکلو په وخت کښ او د هر مصنف او د لولونکی د پاره۔ د خطیب د پاره د کوژدن کونکی د پاره۔ د خپل نکاح د کونکی د پاره۔ د بل د نکاح تړونکی د پاره د اهمو کارونو په شروع کښ او د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د نوم په اوریدو باندے، یا لیکلو باندے درود ویل مستحب دی۔

او په اوو وختونو کښې درود لوستل مکروه دی. د کور والي په وخت کښې، د او دس ماتي په وخت کښې. د بو څیز د خرڅولو د شهرة ورکولو په وخت کښې د ټکرے په وخت کښې د څناورو د حلالے په وخت کښې د پرنجي په وخت کښې که د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم نوم په قرآن کښې راځي نو درود به نه وائي.

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا ○ عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّھِمِ

# دریم فصل

## د درود د نه وئیلو سزاگانے

(۱) په فضائل رمضان کښې د کعب بن عجره روایت تیر شو یدے. چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم خلق د ممبر سره راجمع کړو. او د ممبر په هره پوړئ به یې چه خپه کیخوده. نو آمین به یې وئیلو. اصحابو ترے تپوس اوکړو چه دا سے آمین خو مونږ له تا سو نه وو اوریدلے. چه دانن تاسو وے اووے. نو دوی اووے چه دا خو جبرئیل علیه السلام راغے. چه ما په اوله پوړئ خپه کیخوده نو ده اووے. چه هلاک دِ شی. هغه کس چه د رمضان میاشت بیامومی. او دے د خپلے بخنے د پاره عبادات او نه کړی. ما وے آمین او په دویمه یې اووے. چه هلاک دِ شی هغه کس چه د هغه مخکښې ستا خوږ نوم وا خستے شی او په تا درود او نه وائي. ما وے آمین. بیا په (۳) یمه درجه کښې یې اووے. چه څوک بوډاګان مور پلار بیامومی او د دوی په خدمت جنت ته داخل نه شی نو هلاک دِ شی ما وے آمین.

فائده:- دا بنده څومره بد بخت دے. چه یو خوا ورته جبرئیل غوندے لویه ملائکه خیرے کوی. او بیا په دے باندے خوږ نبي صلی الله علیه وسلم هم آمین وائي. خدائي دِ مونږ د دے دریوارو خبرو نه بچ کړی. کنی بیا خو یقیني هلاکت دے. او د درمنثور په روایت کښې دا زیاتے دے. چه د دے

آمین وئیلو خوب نبی صلی اللہ علیه وسلم ته جبرئیل علیه السّلام اووے۔ د
دینه د دے خیرو ډیر لوئ ولے معلومیږی۔
د غیسے روایت د حضرت مالک بن حویرث نه هم نقل دے۔ او د
حضرت انس په روایت کښ د هلاکت په ځائ دالفظ دے چه د ده د
پوزه په زمکه او مخلے شی۔ په د دیوارو موقعو کښ دا سے تکے دے۔
چه "بد بخت دِ شی هغه کس" او د ابن عباس په روایت کښ دا تکے دے۔ چه
هلاک دِ شی او تباه برباد دِ شی" علامه سخاوی د خوب نبی صلی اللہ علیه و سلم په
نوم د نه درود ویو نکو دا سزا گانے په مختصرو تکوکښ بیان کړی دی۔ د هلاکت
خبرے، د بد بختئ خبرے۔ د جنت لار په ترے هیره شی۔ په دوزخ کښ په داخل
شی۔ دے ظالم دے۔ دے د ټولو نه زیات بخیل دے۔ د ده دین سالم نه دے او
دے به د خوب نبی صلی اللہ علیه وسلم زیارت نه شی کولے۔

يَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا ۔ عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۲) عَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْبَخِيْلُ مَنْ ذُكِرْتُ عِنْدَهٗ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ۔

د علی نه روایت دے۔ ده وے چه خوب نبی صلی اللہ علیه وسلم وے شوم هغه بنده دے چه د ده په مخکښ ځما نوم واخستے شی۔ او دے درود نه وائی۔

فائده:۔ علامه سخاوی یو عربی شعر وائی سه

چه څوک واوری د ده نوم او درود نه وائی ۔ دے هم شوم دے هم نامرد به ورو ایو

د دے مضمون حدیث د حضرت حسن او حضرت حسین نه هم نقل دے۔ او
د ابوهریره په حدیث کښ دی۔ چه دے بخیل او پوره بخیل دے۔ او په
یو روایت کښ ده ته ډیر عاجزو ئیلے شوید ے۔ او د حضرت عایشه په
حدیث کښ دا سے دی۔ چه خوب نبی صلی اللہ علیه وسلم وے۔ چه هلاکت دے
د هغه چا د پاره چه ما به په قیامت کښ او نه وینی دوی عرض اوکړو۔ چه دا به
څوک وی؟ خوب نبی صلی اللہ علیه وسلم وے دا به بخیل وی۔ دے وے۔
خوږه نبی! بخیل څوک دے۔ دوی اووے۔ دا هغه کس دے۔ چه ځما نوم

واوری۔ او په ما درود او نه وائي۔

یَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۳) عَنْ قَتَادَةَ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْجَفَاءِ اَنْ اُذْکَرَ عِنْدَ رَجُلٍ فَلَا یُصَلِّیْ عَلَیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

دَ قتاده نه روایت دے . یو سړی چه دا دَ ظلم کار دے۔ چه دَ چا په مخکښ زما ذکر اوشي۔ او هغه په ما باندے درود او نه وائي۔

فائده :۔ دَ دا سے محسن مهربان نبي صلی الله علیه وسلم چه دَ هغه په طفیل زمونږ دَ دنیا او دَ آخرت ژوند ښائسته کیږي۔ دَ هغه په نوم اوریدو چه بنده درود نه وائي نو واقعي چه دا بنده ظالم دے۔ حضرت گنگوهیؒ به چیلو تابعدارو ته وے۔ چه درے سوه کرته په شپه او ورځ کښ درود وایئ۔ کنې سل کرته خو ئي خامخا وایئ۔ دوی به وے چه په دا سے محسن نبي صلی الله علیه وسلم درود نه ویل ډیره بے مروتي دی۔ اودوی به دا دَ مونځ دا درود کوم۔ چه مونږ دَ تشهد نه روستو وایو۔ خوښ وو۔ او دا درود تاج وغیره به یئے نه خوښولو۔ دوی به وے چه په دیکښ بعض تکی خلاف شرع خبرو ته گرځي۔

علامه سخاویؒ دَ "جفاء" معنی دَ طبیعت سختي او دَ خوږ نبي صلی الله علیه وسلم نه لرے والے کوی۔

یَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۴) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا جَلَسَ قَوْمٌ مَجْلِسًا لَمْ یَذْکُرُوْا اللّٰهَ تَعَالٰی فِیْهِ وَلَمْ یُصَلُّوْا عَلٰی نَبِیِّهِمْ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا کَانَ عَلَیْهِمْ مِنَ اللّٰهِ تِرَةٌ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ فَاِنْ شَاءَ عَذَّبَهُمْ وَاِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُمْ۔

دَ ابوهریرهؓ نه روایت دے دَ وے چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم وے چه څوک په یو مجلس کښ کیني او په دیکښ دَ خدای ذکر او نه کړی۔ او نه په خوږ نبي صلی الله علیه وسلم درود او نه وائي۔ نو دا مجلس به په دوی باندے دَ قیامت په ورځ دَ تکلیف سبب وی۔ بیا دَ الله خوښه ده۔ که دے عذابوی۔ او که دے بخي۔

فائده:- او د ابوهریرهؓ په روایت کښ داغلي دي. چه دا مجلس پاسي او درود او نه وائي. نو په دے مجلس به تر قیامته افسوس کوي. یا دا مجلس به د دوی د پاره وبال وي. او د ابوسعید په روایت کښ چه د دے قسم مجلس خاوند که اړو جنت ته د نورو عملونو په وجه داخل هم شي. خو بیا به هم چه دے د درود د ثوابونو نه خبر شي. نو دے به افسوس کوي. چه ما ولے درود نه دے. چه دا ثوابونه م کتلي وے. او د ابوهریرهؓ په روایت کښ دے قسم مجلس ته په مردار ے ناسته ویلے شوے ده. د مردار ے په خوا کښ ناسته خو دماغ خرابوي. نو به ربه! ننني مجلسونه او خاصکر د انتخاباتو مجلسونه خو هم د غسے وي.

یَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا ... عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۵) عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَیْدٍ قَالَ بَیْنَمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدًا اِذَا دَخَلَ رَجُلٌ فَصَلّٰی فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِیْ وَارْحَمْنِیْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَجِلْتَ اَیُّهَا الْمُصَلِّیْ فَاِذَا صَلَّیْتَ فَقَعَدْتَ فَاحْمَدِ اللّٰهَ بِمَا هُوَ اَهْلُهٗ وَصَلِّ عَلَیَّ ثُمَّ ادْعُهُ قَالَ ثُمَّ صَلّٰی رَجُلٌ آخَرُ بَعْدَ ذٰلِکَ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَصَلّٰی عَلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَیُّهَا الْمُصَلِّیْ اُدْعُ تُجَبْ (ترمذی)

د فضاله د عبید د خوئ نه روایت دے ده وے چه په دے منځ کښ چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم ناست وو. په دیکښ یو سړے راغے ده مونځ اوکړو. او ده اووے. اے خدایه! ما اوبخے. او په ما رحم اوکړے. پس خوږ نبي صلی الله علیه وسلم ورته اووے چه تا تادی اوکړه. چه مونځ اوکړے نو کینه. د خدائ ثنا اووایه. لکه چه د ده پکار ده. او په ما درود اووایه. نو بیا سوال کوه. فضاله وائي. چه بیا بل سړے راغے. چه مونځ یې اوکړو نو د خدائ تعریف یې اوکړو. او په خوږ نبي صلی الله علیه وسلم یې درود اووے. نو ده ته خوږ نبي صلی الله علیه وسلم اووے. چه ما نځګذاره اوس سوال کوه قبول به شي.

فائده:- علامه سخاوي وائي. چه د دعا په اول او په منځ او په آخر کښ درود

ویل پکار دی. دیته علماء مستحب وائی. دَ دعا شروع په حمد وثنا بیا درود اود غسے ختم یې هم په درود پکار دے. او دَ درود په وخت کښ دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ فضائلو ذکر پکار دے. چه په دے به دعا قبلیږی. او ستا او دَ خدای په مخ کښ به پرده لرے کیږی. صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسْلِيمًا كَثِيرًا.

جابر رض دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه مانه دَ سور پیاله مه جوړه وئ. او چه دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه دَ دے تپوس اوشه. نو دوی او فرمائیل. چه مسافر فارغ شی نو په لوښی کښ او به واچوی. بیا د اوڅکی. یا یرے او دس او کړی. یا یئے او غورځوی په ما دَ دعا په اول په مخ او په آخر کښ درود وائی.

علامه سخاوی رح دَ دے دا مطلب لیکی. چه دا مسافر یو لو ښئے دوستو په کته کښ زوړند کړے وی. نو مطلب دا شه چه په ما دَ پټولو نه دوستو درود مه وائی. ابن مسعود وائی. چه کوم وخت تا سو دَ دعا اراده اوکړئ. نو اول حمد وثنا کومه چه دَ خدای شایانِ شان دی او وائی. بیا درود په خوږ نبی صلی الله علیه وسلم بیا دعا او غواړئ. نو ډیره نزدے ده چه په دیکښ کامیاب شئ. او عبد الله بن بسیر خو وے. چه ټولے دعاګانے بندے وی. ترڅو چه حمد وثنا او درود پکښ او نه وئیلے شی. چه دا اووائی نو هله دعا قبلیږی.

بل دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم فرمان دے. چه دا درود ستا سو دَ دعا ګانو حفاظت کوی. او په دے در نه خدای رضا کیږی. او حضرت عمر رض وائی. چه دعا ګانے دَ ځمکے او آسمانو نو تر منځه زوړندے وی. په درود خلاصیږی. او دَ دے وجه دا ده. چه درود خو خدای ته مقبول دے. نو په دیکښ بیا خدای دا نه کوی. چه درود مقبول کړی او دعا رد کړی. نو دعا هم پکښ قبوله شی. "کویا درود هغه دَ خدای او دَ بنده تر منځه پرده پورته کړی. او دعا دَ قبول مقام ته اورسی. ابن عطا وائی. چه دَ دعا څه ارکان دی. څه وزرے دی. او څه اسباب دی. او څه اوقات دی. نو ارکان یې دَ زړه نرمی عاجزی اوزاری او دَ خدای سره دَ زړه تعلق دے

او وزر یې صداقت دے. او وختایې د شپې آخرد ے. او اسباب یې په خوبړ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم درود دے. او خوبړ بنی صلی اللّٰه علیه وسلم د دعا د قبلیدو طریقه فرمائي - سنه اودس، دوه رکعته مونځ، حمد وثنا او درود بیا دعا نو دا به قبوله شي. او دعا دا ده.

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ اَسْئَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَ عَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ ذَنْبٍ لَا تَدَعْ لِيْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهُ وَلَا هَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهُ وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا اِلَّا قَضَيْتَهَا يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ ط

نشته یې د اللّٰه نه بل معبود. بردبار او کرم خاوند دے. د هر عیب نه پاک دے. د لوئ عرش خاوند دے. او لویې ثناګانې خدائ لره دی. رب د عالمو دے. سوال کوم د هغه سوال کوم د هغه څیزونو چه ستا رحمت واجب کرځوی. او ستا د مغفرت د پاره داسې اعمال غواړم. چه د بخنې سبب وی. او د نیکئ برښنه غواړم. او سلامتی د هر ګناه نه ګناه به د بخنې مه پریږده. او نه غم بې د رې کولو. چه ستا د رضا برابر وی. او نه رحاجت بې پوره کو لو پریږده. اے ارحم الراحمین خدایه!

# څلورم فصل

## د مختلفو فائدو په بیان کښې

اوله :- په قرآنی آیت کښې "صَلُّوْا" امر دے. او دا د وجوب د پاره داخی. ځکه جمهور علماء وائي. چه درود په ټول عمر کښې یو ځل او وئیل فرض دی. او بعض علماء په دے اجماع منی. او په تیر فصل کښې تا سوا ولیده. د درود نه ویونکی ته بخیل، ظالم، بد بخت او وئیلے شته او ده ته جبرئیل او خوبړ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم د هلاکت خیرے او کړے. ځکه بعض علماء وائي چه

دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په هرګذار نوم اوریدو درود وئیل واجب دی دَ احنافو په دیکښې دَ امام طحاوی دا رایئے ده. چه په هرګذار نوم درود واجب دے. او امام کرخی وائي. چه دَ فرض درجه یوګذار ده او هرګذار وئیل مستحب دی.

دریم:- دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ نوم سره "سَیِّدِنَا" وئیل مستحب دی. ځکه چه سرداری خو دَ ده ده. نو دا عین ادب دے. خو بعض خلق دَ ابوداؤد په یو روایت دالفظ وئیل منع کوی.

یو صحابی ابو مطرف خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته دَ یوے جرګے سره پیش شه. نو دے وائي چه موږ اووے. چه اَنْتَ سَیِّدُنَا. نو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اوویے چه اَلسَّیِّدُ اَللهُ چه حقیقی سید خو خدائ دے. خو دَ دے دا مطلب نه دے. چه ګنے سَیِّد لفظ دِ دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ پاره نه شی وئیلے. ځکه چه په بخاری او مسلم کښ دَ ابوهریره په روایت نقل دے چه اَنَا سَیِّدُ النَّاسِ یَوْمَ الْقِیٰمَۃِ. او دَ مسلم په روایت کښ دی. چه اَنَا سَیِّدُ وُلْدِ آدَمَ یَوْمَ الْقِیٰمَۃِ. او په ترمذی کښ په دے زیاتے دے. چه وَلَا فَخْرَ. نو توفیق یے داسے شه. چه دَ ابوداؤد دَ حدیث مطلب کمالِ سیادت دے. دَ دے داسے مثال شه. لکه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ مسکین په باره کښ اوویے. چه هسے خو په دنیا کښ مسکینان وی. خو کامل مسکین به هغه وی. چه مال ورسره هم نه وی. او سوال هم نه کوی. دغسے خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اوویے. چه پهلوان خو هغه دے. چه په قار کښ غصه قابو کړی. نو دا پهلوان چه بل او پرزه وی. دا هم پهلوان دے. خو کامل پهلوان دَ قار ضبط کونکے دے. بل خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اوویے. چه تاسو "رَقُوب" پیژنئ. دوی وے چه اولاد یې نه وی. نو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اوویل چه نه دَ رَقُوب خو هغه دے. چه دَ ده معصوم

بچے مړ نه وی. د غنیے یو سړی خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته راووسته. چې ماته داخپل مهر نبوة اوښایه. زه طبیب یم چه د دے علاج اوکړم نو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ورته اووے. چه طبیب خو الله دے. نو د دے دا مطلب نه دے. چه مونږ دې چاته طبیب نه وایو. نو د سید نفی د حقیقت نفی نه ده. بلکه د کمال نفی ده. نو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته سید ویل منع نه دی. او علامه مجدالدین وائي. چه په مانځه کښ د سید نا نه وائي. او په نورو درودونو کښ دې وائي.

او د حضور صلی الله علیه وسلم د سید نه د انکار نورو وجوهات هم کیدے شي. چه د عاجزئ په خاطر یې ویلي وی. یا په مخامخ یې تعریف خوښ نه وو. دوی په تعریف کښ مبالغه کوله. د دے جرګے د دے نه علاوه ویلی وو. چه ته خو زمونږ پلار یې. او ته خو "جُفْنَةُ الْغُرَباءِ" یې. یعنی غریبانو ته خوړو نکے یې. سړے او غوړے زیړے دکے پیالے په خلقو خوروے. په دے قسم خبرو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم انکار اوکړو. او دوی ته یې اووے. چه تاسو دې شیطان په مبالغه کښ وانه چوی. سره د دے چه د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اَنَا سَیِّدُ وُلْدِ آدَم ثابت دے. او د حسن په باره کښ یې ویلی وو چه اِبْنِیْ هٰذَا سَیِّدٌ. د غنیے خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د حضرت سعد رض د پاره ویلی وو. قُوْمُوْا اِلٰی سَیِّدِکُمْ او د عبدالله بن مسعود رض په درود کښ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی سَیِّدِ الْمُرْسَلِیْن دے. نو د ابوداؤد حدیث خو د دے احتمالاتو په وجه دلیل پاتے نه شه. او س دې منع کونکی پل دلیل راوړی.

په قرآن شریف کښ د حضرت یحییٰ ؑ د پاره سَیِّدًا وَحَصُوْرًا راغلی دے. حضرت عمر رض ابوبکر رض ته اَبُوْ بَکْرٍ سَیِّدُنَا وَ اَعْتَقَ سَیِّدَنَا ویلی دے. ځکه علامه عینی لیکی. چه که څوک سیّدی یا مولائي چاته وائي نو دا منع نه دی. خاوند ته سیّد ویلے شی. په قرآن کښ وَ اَلْفَیَا سَیِّدَهَا د زنیخے خاوند سید وو.

امام مالکؒ هم دے سید ته مکروه نه وائي. خوږ نبي صلی الله علیه وسلم د بنو
سلمه نه تپوس کړے وو. مَنْ سَیِّدُ کُمْ. دوی ورته اووے. جَدُّ بْنُ قَیْسٍ
نو خوږ نبي صلی الله علیه وسلم ورته اووے. بَلْ سَیِّدُ کُمْ عَمْرٌ وبْنُ جَمُوحٍ
او مشهور حدیث دے. إِذا نَصَحَ الْعَبْدُ سَیِّدَ هٗ. په بخاری کښ دی. چه
اَطْعِمْ رَبَّکَ او وَ ضِّئ رَبَّکَ مه وایه. بلکه وَلْیَقُلْ سَیِّدِ یْ وَمَوْلَائِیْ وایه

نو خبره صفا شوه.

دریم:- د عیسے بعض خلق مَوْلَانَا لفظ هم د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم
د پاره نه خوښوی. خو د دے دلیل ترا وسه مانه دے موندلے. د اُحد په جنګ
کښ خوږ نبي صلی الله علیه وسلم ابو سفیان ته ویلي وو. اَللّٰهُ مَوْلَانَا وَلَا
مَوْلَا لَکُمْ. او په سورة محمد کښ دی چه ذٰلِکَ بِاَنَّ اللّٰهَ مَوْلَی الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا
وَاَنَّ الْکَافِرِیْنَ لَا مَوْلٰی لَهُمْ. ولے د دے نه دا نه معلومیږی. چه کئے غیر
الله ته مولیٰ ویل منعَ دی. بلکه دلته هم کامل ولایت مراد دے. ځکه چه
حقیقی مولا خو صرف خدائ دے. لکه خدائ وائي. مَا لَکُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ
مِنْ وَّلِیٍّ وَّلَا نَصِیْرٍ. ستاسو د خدائ نه سیوا بل څوک نه دوست شته او
نه مددګار. او بل ځائ دی. چه وَاللّٰهُ وَلِیُّ الْمُؤْمِنِیْنَ. او په بخاری شریف
کښ خوږ نبي صلی الله علیه وسلم وائي. چه مَنْ تَرَکَ دَیْنًا وَّ ضِیَا عًا فَاَنَا وَلِیُّهٗ
دلته خوږ نبي صلی الله علیه وسلم په خپله ځان ته "ولی" اووے. او خوږ نبي
صلی الله علیه وسلم به وے. چه خپل مالک ته مولا او سید وایئ. او دا
فرمان د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم دے. چه مَوْلَی الْقَوْمِ مِنْ اَنْفُسِهِمْ. او
د قرآن فرمان دے. لِکُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِیَ مِمَّا تَرَکَ الْوَالِدَانِ. او د حدیث او د
فقه کتاب النکاح خو د کتاب الاَوْلِیَاء نه ډک دے. او خوږ نبي صلی الله علیه
وسلم زید بن حارثه ته وے. چه اَنْتَ اَخُوْنَا وَ مَوْلَانَا او په ترمذی کښ د
زید بن ارقم نه د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم دا فرمان نقل دے. چه مَنْ

كُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِيٌّ مَوْلَاهُ ۔ چه زه د چا مولا یم. نو علیؓ د دهٔ مولا دے. مشهور
حدیث دے. ملا علی قاریؒ د مولا دا معنا گانے لیکی. رب. مالک. سید. منعم،
احسان کونکے، غلام آزادونکے. مددګار. محب، تابع، ګاوندی، د تره ځوئ
حلیف. نو د دے لفظ به د موقعے په مناسب معنیٰ اخستے شی. لکه د الله د
پاره به د مولیٰ. وَلَا مَوْلٰى لَكُمْ معنیٰ رب وی. او دا چه مَنْ كُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِيٌّ
مَوْلَاهُ. دلته به مراد ناصر او مددګار وی. او دا فرمان اسامه بن زید ته خوږ
نبی صَلَّی الله علیه وسلم کړے وو. چه دهٔ حضرت علیؓ ته وے. چه ته ځما
مولا نه یے. ځما مولیٰ خو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دے. نو خوږ نبی صلی
الله علیه وسلم او وے. چه زه د چا مولیٰ یم. د هغه به علیؓ هم مولیٰ وی.
علامه سخاوی او قسطلانی د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په نومونو کښ
مولا شمار کړے دے. زرقانی د قسطلانی د کلام دا سے شرح کوی. چه ولی او
مولیٰ د خدائے په نومونو کښ دے. او د دے معنیٰ مددګار دے. خوږ نبی
صلی الله علیه وسلم وائی. اَنَا وَلِیُّ كُلِّ مُؤْمِنٍ چه زه د هر مؤمن مددګار یم
او امام رازیؒ د اِنَّ الْكَافِرِیْنَ لَا مَوْلٰى لَهُمْ او د ثُمَّ رُدُّوْا اِلَى اللهِ مَوْلٰهُمُ
الْحَقِّ بتوفیق دا سے راولی. چه د کافرانو مولیٰ نشته دے. د دے دا معنیٰ ده
چه د دوی څوک مددګار نشته. او د مَوْلٰهُمُ الْحَقِّ معنیٰ ده. چه د دوی مالک
او رب الله دے. او جلالین د مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ تفسیر په مالک کوی. نو خلاصه
دا شوه. چه هر کله د مولانا معنیٰ رب او مالک وی نو دا به د الله د پاره
استعمالیږی. او چه د دے معنیٰ سردار وی. نو دا به د خوږ نبی صلی الله
علیه وسلم بلکه د هر مشر د پاره استعمالیږی.

ملا علی قاری د احمد په روایت د حضرت رباح نه نقل کوی. چه یوه
ډله په کوفه کښ د حضرت علیؓ سره راغله. او دوی او وے چه اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ
یَا مَوْلَانَا. نو دهٔ ورته او وے. چه تاسو خو عرب یئ. نو زه کله ستاسو

مولیٰ کیدے شم. دوی ورته اووے چه خوب نبی صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی. مَنْ كُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِيٌّ مَوْلَاهُ. او دا د انصارو تو لکے دو. په دیکښ ابو ایوب انصاری هم دو.

ابن حجر په فتح الباری کښ لیکی. چه مولیٰ د سردار په معنیٰ ویل مکروه نه دی. ځکه چه د دے معنیٰ اعلیٰ دے. خو مولیٰ د غلام او د مالک دواړو د پاره راځی.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا أَبَدًا عَلَى حَبِيبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

څلورم:- یو لیکو نکے چه د خوب نبی صلی الله علیه وسلم نوم لیکی. نو د ته صلی الله علیه وسلم پوره لیکل پکار دی. محدثین حضرات په دیکښ ډیر زور لګوی. دوی چه هر قسم نکے د خپل استاذ نه داوری. هم هغه رنګ لیکل یے ضروری ګنړی. خو د درود په باره کښ وائی. چه که دا اګر د استاذ په کتاب کښ نه هم وی. دا به لیکی. او دوی وائی. چه درود به په ژبه هم وائی. او په قلم به یے هم لیکی. علامه سخاوی په دیکښ ډیر ثواب وائی. او محدثین به په دے وجه ډیرے لوئے درجے بیا مومی. او هر څو مره کله اړه چه د دوی نوم راځی. په هر کله ار د پوره درود لیکی. ځکه چه د ابو هریره رض په روایت خوږ نبی صلی الله علیه وسلم فرمائی. څوک چه ځما نوم په کتاب کښ لیکی. نو فرښتے به په ده باندے درود لیږی. ترڅو چه ځما نوم په کتاب کښ لیکلی وی. او د ابو بکر رض په روایت د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم هم دغه قسم فرمان دے. چه څوک ځما څه علمی خبره او لیکی. او ور سره درود هم اولیکی نو ده ته به د دے ثواب تر هغے ورکیږی. ترڅو چه دا کتاب لوستے شی. علامه سخاوی په ډیرو روایاتو کښ لیکی. چه د قیامت په ورځ به د محدثینو تو لکے حاضر شی. او د دوی سره به مشوانړئ وی. په کوم چه دوی احادیث لیکل. نو د جبریل په واسطه به د دینه تپوس او شی. چه دوی څوک دی؟ او څه

غواړی؟. دوی به او وایئ چه مونږ دَ احادیثو لیکو نکی لولو نکی وُو. نوخدایٔ به دوی ته او وایئ. چه تا سو جنت ته ورځئ. تا سو به ځما په نبی صلی الله علیه وسلم ډیر درود وے. ځکه علامه سیوطی لیکی. چه دَ درود دَ لیکلو ډیر خیال پکار دے. په هرګذار لیکلو دِ بنده نه ستومانه کیږی. چه پدے کښ ډیرے فائدے دی. څوک چه په دیکښ ناراستی کوی. نو دوی دَ ډیر لویٔ خیر نه بے برښے کوځئ. اِنَّ اَوْلَی النَّاسِ بِیْ یَوْمَ الْقِیَامَۃِ دَ دینه مراد محدثین دی. لکه په فصل اول ۳ کښ تیر شوی دی.

صاحب دَ اتحاف لیکی چه دَ حدیث طلباءٔ ته تادی نه ده پکار درود دِ نه پریږدی. دے وایئ. په دے باره کښ ډیر خوبونه لیدلی شوی دی۔ سفیان بن عینیه هم دَ خپل دوست سره دَ مرګ نه پس په خوب کښ دَ ملاقات په باره کښ لیکی. چه ده راته او وے. چه ځما بخنه په دَے اوشوه. چه ما به احادیث لیکل او په خوب نبی صلی الله علیه وسلم به م په هرګذار درود لیکه. نو څه خدایٔ په دے او بخلم. ابوالحسن میمونی دَ خپل استاد ابو علی په باره کښ لیکی چه دے م په خوب کښ اولیده. دَ ده په ګوتو په سرو زرو یا په زعفرانو څه لیکلی شوی وو. ما وے استاذه داڅه دی؟ ده وے چه په دے ګوتو به ما درود شریف په احادیثو کښ لیکه. نو دا دَ ولئ کړی شوی دی. او امام احمد، حسن بن محمد ته په خوب کښ ویلی وو. چه ارمان دے تاهغه رڼا لیدلے وے. کومه چه ځما په مخ کښ دَ درود په وجه پیدا شوے ده. (بدیع)

یَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

پنځم:- حضرت تهانوئ یوخواداب لیکی.

(۱) چه دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ نوم سره صلوٰة وسلام لیکی صلی الله علیه وسلم پوره دِ لیکی. صلعم دِ نه لیکی.

(۲) یو کس به احادیث لیکل . او درود به یې نه لیکه . نو دغه به بنی لاس
خوږ . و نکے نتکئي را اوخته . (۳) شیخ ابن حجر لیکي . چه یو کس به صلی الله
علیه قدرے لیکه . نو دغه ته خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښې حاضر شه
او دغه ته یې اووے . چه په سلم کښې څلور حرفونه دي . څلوېښت نیکئ ولے پرېږدې
(۴) درود دیو نکے دِ حیا ځے او وجود صفا ساتي . (۵) دَ خوږ نبی دَ نوم نه مخکښې سیدنا
لفظ زیاتول مستحب دی .

مسئلے :- (۱) دَ صَلُّوا لفظ په وجه یو کدار درود ویل فرض دی . دا ایت په
شعبان ۲ سنه کښې نازل شوے دے . (۲) ډیر کدا ده دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
نوم دیونکی او اوریدونکی ته درود ویل واجب دی . خو مُفتی به خبره داده
چه یوکدار واجب دی او بیا مستحب دی . (۳) دَ آخری تشهد په آخر کښې درود پکار دے .
په نورو ځایونو کښې مکروه دے . (۴) په خطبه کښې چه دَ خوږ نبی صلی الله علیه
وسلم نوم راشي . نو په زړه کښې دِ درود او وائي . ژبه دِ نه خوزه وي . دَ صَلُّوا وَسَلِّمُوا
حکم دغسې جواب دے . (۵) بے اودسه درود ویل جائز دی . خو سره دَ اودسه ډیره ښه
رتبه رتبه ده . (۶) درود صرف په پیغمبرانو او ملائکو باره راستا ویل پکار دی . او په
نورو تبعًا لکه داسے دِ نه وائي . اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلیٰ آلِ مُحَمَّدٍ دِ . بلکه داسے دِ وائي .
اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلیٰ مُحَمَّدٍ وَّعَلیٰ آلِ مُحَمَّدٍ (۷) په دنیوی تجارتی خیر باندے چه درود دِ بذاتِ
خود مقصد نه وي . نه دی ویل پکار . (۸) په درود باندے اندامونه خوزول ، یا
چغے وهل نادانی ده . نو دَ مانځه نه پس په حلقو کښې په چغو چغو درود ویل
نه دی پکار .

یَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا ❊ عَلیٰ حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

# پنځم فصل - د درود شریف متعلق قصے

د قرآن شریف او د احادیثو د ذکر نه پس بیا د قصو لیکلو ضرورت نه وو. خو د خلقو د بزرګانو په واقعاتو اوریدو لبر زیات دین ته شوق پیدا کیږی. ځکه د دین د مشرانو حکایات هم روستو ذکر کوم. شیخ تهانوی رح په زادالسعید کښ څه حکایات لیکلی دی. زه هغه لیکم.

(۱) په مواهب لدنیه کښ د تفسیر قشیری نه نقل دے. چه په قیامت کښ به د مؤمن نیکئ کمے شی نو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم به د کوټو د سر هومره یوه پرچه په تله کښ کیږدی. چه په دے به د ده نیکئ درنے شی. دے به اووائی څما مور پلار درنه قربان شه! ته څوک یے؟ ته څو ډیر ښکلے بندګه یے. دے به ورته اووائی زه ستا نبی (صلی الله علیه وسلم) یم. او دا هغه درود شریف دے چه تا په ما وئیلے وو. نو هغه مې تا ته ستا د حاجت په وخت کښ درکړو. (حاشیه حصن)

(۲) عمر بن عبد العزیز رح لوئی او نیک تابعی خلیفه راشد تیر شوید ے. ده به د شام نه مدینے ته خاص قاصد لیږله. چه د ده د طرف نه خاص د روضے سره خوږ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته سلام عرض کړی. (فتح القدیر)

(۳) د امام شافعی رح یو شاګرد امام شافعی رح په خوب کښ اولیده. او د ده نه یے تپوس اوکړو. چه تا سره د مرګ نه پس څه معامله اوشوه؟ ده وے زه خدائ اوبخلم زه یے په ډیرو عزتو نو جنت ته بوتلم. او دا څما د دے درود برکت وو اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ کُلَّمَا ذَکَرَهُ الذَّاکِرُوْنَ وَ کُلَّمَا غَفَلَ عَنْ ذِکْرِهِ الْغَافِلُوْنَ. (حاشیه حصن)۔

(۴) په منهاج الحسنات کښ د فخر منیر نه د یو بزرګ صالح موسی قصه ذکر ده. چه یو جهاز په ډوبیدو اولګیده. او ده وے زه پکښ وم. په ما پر کالی غنوده راغله او خوږ نبی صلی الله علیه وسلم راته اووے. چه دے سورلو ته اووایه چه ددا

کله دا درود اووایی. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی سَیِّدِنَا مُحَمَّدٍ صَلٰوۃً تُنْجِیْنَا بِهَا مِنْ جَمِیْعِ الْاَهْوَالِ وَالْاٰفَاتِ وَ تَقْضِیْ لَنَا بِهَا جَمِیْعَ الْحَاجَاتِ وَ تُطَهِّرُنَا بِهَا مِنْ جَمِیْعِ السَّیِّئَاتِ وَ تَرْفَعُنَا بِهَا اَعْلَی الدَّرَجَاتِ وَ تُبَلِّغُنَا بِهَا اَقْصَی الْغَایَاتِ مِنْ جَمِیْعِ الْخَیْرَاتِ فِی الْحَیٰوۃِ وَ بَعْدَ الْمَمَاتِ اِنَّکَ عَلٰی کُلِّ شَیْئٍ قَدِیْرٌ. نو دوی لا درسے سو کله اله دا درود نه وو ویلے. چه جهاز بچ شه.

(۵) علامه سخاوی نقل کوی. د عبید الله بن عمر قواریری نه چه یو کاتب حما کاوندی وو. هغه مرشه نو ما دے په خوب کښ اولیده. ما وے څه رنګ تیره شو. ده وے خدائی او بخلم. ما وے په څه؟ نو ده وے چه ما به د خوید نبی صلی الله علیه وسلم خا غخا لیکه. نو ما ته یے هغه څه راکړه. چه نه ستر ګو لیدلی دی. او نه غوږ ونو اوریدلی دی. (ګلشن جنت)

(۶) د دلائل الخیرات د لیکلو سبب دا دے. چه د دے مؤلف په سفر تلو او د اودس د پاره د سره بوقه اوبرے نه وو. د کوهی په خواکښ ناست وو. په دے کښ یوه جینئ راغله. او دے په کوهی کښ ته کاتری تو کړه. کوهے سر ته راغے. ده د دے نه تپوس اوکړو. چه دا ولے؟ نو دے ورته اووے. چه دا د درود په برکت باندے. نو ده دلائل الخیرات لیکل شروع کړه.

(۷) شیخ زروق لیکی. چه د دلائل الخیرات د مؤلف د قبر نه د مشکو خوشبوئی ځی. د درود دو نو په برکت.

(۸) مولانا داوئی چه ما ته حما دوست د یو خوشنویس قصه کوله. چه د ده عادت وو. چه دے به خط ته کیناسته نو اول به یے یو ګل ارد درود په یو مخصوص کاغذ اولیکه. د ده چه ځنکدن شه. نو د ده سره ډیر فکر وو. چه څه به کیږی. په دے کښ یو مجذوب راغے. او ده ته یے اووے. چه فکر مه کوه. ستا د درود بیاض خوید نبی صلی الله علیه وسلم ته پیش دے. او هغه یرے صاد کوی.

(۹) مولانا فیض الحسن سهارنپوری چه په کوم کور کښ وفات شوے وو. نو د دے کور ته به یوه میاشت خوشبوئی تله. ده به د جمعے په شپه ډیر درود دے. دا مولانا ته د ده زوم قصه کوله.

(۱۰) ابو زرعهؒ په خوب کښ یو سړے اولیدلو. چه په اسمان کښ یې فرښتو سره مونځ کولو. ده ورته اووے. چه تا ته دا دومره مرتبه څنګه حاصله شوه. ده ورته اووے. چه ما لس لکه احادیث لیکلی دی. او د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په هر نوم مې درود ویلے دے. ځکه دا مرتبه راکړے شوه. صحیح دا ده چه دا د ابو زرعهؒ واقعه ده.

(۱۱) د امام شافعیؒ دا یوه واقعه ده. چه دے چا په خوب کښ اولیدلو. او ده د خپل مغفرت سبب د جمعې په شپه دا پنځه درود ونه اوښودل. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ بِعَدَدِ مَنْ صَلّٰى عَلَيْهِ وَصَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ بِعَدَدِ مَنْ لَّمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ وَصَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ كَمَا اَمَرْتَ بِالصَّلٰوةِ عَلَيْهِ وَصَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ كَمَا تُحِبُّ وَتَرْضٰى اَنْ يُّصَلّٰى عَلَيْهِ وَصَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ كَمَا يَنْبَغِيْ اَنْ يُّصَلّٰى عَلَيْهِ

(۱۲) ابن حجر مکی د ابو صالح په باره کښ لیکی. چه د ده د مغفرت او جنت ته د تلو سبب د ده د درودونو او ګناهونو ښتو مقابله اوکړه. نو دا پرے زیات وو. نو دے جنت ته لاړ.

(۱۳) ابن حجر مکی لیکی. چه یو نیک بنده دا عادت جوړ کړے وو. چه د شپے به یې په یو خاص مقدار درود وئے. ده یوه شپه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښ اولیدو. او ده ورته اووے. چه دا خوله دې راته نزدے کړه. چه دا ښکل کړم. تا به په دے درود وئے. ده د شرم په وجه د خپلے خولے په ځائې مخ ور مخکښے کړو. ده دا خپله خوله د دے قابله نه ګڼړله. چه د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په خولے مبارکے ښکل شی. خوږ نبی صل الله علیه وسلم ورته مخ ښکل کړو. چه راویښ شه نو ټول کور د خوشبوئی نه خوشبوئیه وو.

(۱۴) شیخ عبد الحق محدث دهلوی په مدارج النبوة کښ لیکی. چه هر کله حواء پیدا شوه. او آدم د دے خواهش اوکړو. نو ملائکو ورته اووے چه صبر کوه. نکاح اوکړه. او مهر ادا کړه. ده وے مهر څه دے؟ دوی اووے. چه په محمد (صلی الله علیه وسلم) لس ځله اره او په یو روایت کښ یوولس ځله اره درود اوایه دغه قسم ډیر روایات دی)

(۱۵) علامه سخاوی ته رشید عطار بیان کړو. چه په مصر کښ ابو سعید خیاط یو ګوشه نشین وو. ده څه موده پس د ابن رشیق مجلس ته تلل راتلل شروع کړه.

اوباقاعده به تلوچاتر تپوس اوکړو. چه تاسو څوک وسته نښتین وی. داولې؟ نو دوي اووې
چه ماته خوب نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل. چه د ابن رشیق مجلس ته ورځه.
ځکه چه دے په مجلس کښ په ما درود ډیر وائی.

يَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۱۶) ابن العباس احمد بن منصور چه وفات شه نو په شیراز کښ چا په خوب
کښ اولیده. چه دے د شیراز جامع مسجد په محراب کښ په ښکلے جوړه کښ تاج
په سر چه مرغلرے پکښ پیټلے دی ولاړ دے. ده ترے تپوس اوکړو چه څه رنګ
حال دے؟ نو ده ورته اووے چه ځما بخنه اوشوه. او ځما ډیر عزت اوشه. اودا
هرڅه په خوب نبی صلی الله علیه وسلم د درود په وجه اوشو.

(۱۷) په روض الفائق کښ د یو بزرګ قصه ده. چه ده وے ځما یو شرابی ډیر
ګنهګار ګاونډی وو. هر وخت به د شرابو په نشه کښ وو. ما به ورته ډیر نصیحت
کوو. او ده به نه اومنله. ماوے نو په اوباسه ده به نه منله. دے چه مړ
شه. نو په خوب کښ م اولیده. چه دے اوچت ځائی کښ دے. او جنتی جامے
ئی اغوستے دی. ماوے داڅه رنګ ده؟ ده وے د ذکر یو محدث په مجلس کښ ناست
ووم. ما په درود اووے نورو خلقو هم اووے. په دے ځما او د دوی بخنه اوشوه

(۱۸) ابو الحسن بغدادی دارمی وائی. چه ما ابو عبدالله بن حامد ډیر کلہ اوکله په
خوب کښ اولیده. ماوے څه حال دے؟ ده راته اووے چه ځما بخنه اوشوه. ماورته
اووے. چه ماته داسے عمل اوښایه چه په هغے نیغ جنت ته لاړ شم. ده راته اووے
چه زر رکعته نفل او په هر رکعت کښ زر کله اوه قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ او وایه ماوے
دا خو ګرانه ده. ده وے نو بیا هره شپه زر کله اوه درود وایه. دارمی وائی چه
ما داخپل معمول اوګرزوو.

يَارَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۱۹) د ابو حفص واقعه تیره شوے چه د وکارو د درود نیے په ګناهونو سیوادونو دے
او بخلے شه. (۲۰) علامه سخاوی وائی. چه په بنی اسرائیلو کښ یو سړے ډیر
ګناهګار وو. چه دے مړ شه نو خلقو لکه د مردار ئے او غورزوو. خو خدائی موسی

علیه السلام ته وحی اوکړه چه دده ته غسل ورکړه. او په دهٔ جنازه اوکړه ما دے بخلے دے. دهٔ دے خدایه دا څنګه؟ - خدائ ورته اووے. چه دهٔ یو ګنړ ادتورات پرانسته او په دیکښ یے د خوږ بنی صلی الله علیه وسلم نوم اولیده. نو دهٔ په خوږ بنی صلی الله علیه وسلم درود اووے. حکه م معاف کړو.

د دے قسم واقعات دا مطلب نه دے. چه کتنے یو ګنړ ادرود باندے ټول حقوق الله او حقوق العباد معاف کیږی. او نه دا واقعات د مبالغے په رنګ کښ دروغ دی. دا د مالک خدائ په قبولیت بناده. د خدائ خوښه ده. کله کله چه هغه خوشحال شی نو د یو ے کلمے په قبول معافی اوشی. خدائ وائی چه زهٔ بے د شرک نه هرهٔ ګناه چه او غواړم نو معاف کولے شم. هغه با اختیاره خدائ دے. یو ګنړ ادکلمه او یو ګنړ اد درود هم د یو بنده د بخښنے د پاره کافی ګرزولے شی. زمونږ په بنی آدمو کښ کله کله د یو سړی په یو کس زد روپئ وی. او دے په څه خبره د دهٔ نه خوشحاله شی. او ټولے روپئ ورته معاف کړی. د دے قصونه دا معلومه شوه. چه په درود کښ د خدائ پاک د خوشحالئ ډیر دخل دے. ځکه درود ویل پکار دی. معلومه نه ده. چه د کوم وخت په کوم محبت ویلے شوے یو ګنړ ادرود د خدائ پاک د خوشحالئ سبب جوړیدے شی.

شعر :- مالله کافی ده یوه اوسکه که قبول تی خدائ نه : څه او شو ډیره ټراکه ورته همیش کومه

یَا رَبِّ صَلِّ وَ سَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۲۱) یو بزرګ په خوب کښ یو ډیر ناکاره شکل اولیده. دهٔ ترے تپوس اوکړه. چه دا ته څه یے؟ دهٔ ورته اووے. چه زهٔ ستا هغه ناکاره عمل یم. دهٔ ورته اووے چه ستا نه په بنده څه رنګ خلاصیدے شی؟ دهٔ وے ډیر ډیر په خوږ بنی صلی الله علیه وسلم درود وایه. رونړو! په مونږ کښ خو داسے څوک نشته. چه هغه شپه او ورځ ګناهونه نه کوی. نو د دے دفع علاج په درود کیږی. نو داولے ډیر ډیر نه وایو.

یَا رَبِّ صَلِّ وَ سَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۲۲) د مولانا شبلی مرحوم نه نقل دے. چه څما په ګاونډ کښ یو سړے او سیده. دے چه مړشه نو مولانا په خوب کښ اولیده. دهٔ ترے د مرګ نه پس د حال تپوس اوکړو. دهٔ وے مولانا ډیره سخته دا یا ندے تیره شوه. او چه منکر نکیر دا سخه را غله

نو ډیره ګرانه قصه راپیښه شوه. ماوے زه جوړ په اسلام نه یم مړ. نو ماته آواز راغے. چه دا سختی ستا د ژبے د بے ښیے ویناګانو ده. چه دے فرښتو زه پرے عذابولم نو بیو ډیر ښائسته بنده . ځما او د دے په مینځ کښ راغے. د ده نه ډیره خوشبوئی تله. د دے فرښتو جواب نه ده ماته اوښودل. ما د دے بنده نه پوښتنه اوکړه. چه دا ته څوک ئے؟ ده وے زه یو بنده یم چه ستا د درودونو نه پیدا شوے یم. او ماته حکم دے چه زه تا د هر مصیبت نه خلاص کړم. (بدیع) تاسو پوئ شوئ. چه د بدو اعمالو ناکاره او د نیکو ښائسته شکلونه جوړیږی. د مړی نه چاپیره په قبر کښ مونږ، روژه د قرآن پاک تلاوت د الله ذکر او درود یږی. او چه د کومے غاړے عذاب راځی نو دے پی دفع کوی. دغسے ناکاره عمل په ناکاره شکلونو کښ. لکه د زکوٰة د نه ورکولو نه به یو اژدها جوړه شی. او د ده به په غاړه شی. اَللّٰهُمَّ احْفَظْنَا مِنْهُ.

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۲۳) عبد الرحمان بن سمره وائی. چه حضور نبی صلی الله علیه وسلم باهر راغے. او دوی او وے چه ما بیګاه یو عجیب قصه اولیده. یو سړے دے دغه په پل صراط په رغړیدو غورځیدو ځی. او کله نښلی. په دیکښ په ما درود ویل ور اورسیده. او دے پی نیغ کړو. تر دے چه د پل صراط نه پورے وت. (بدیع)

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۲۴) حضرت خلف وے. چه ځما دوست په ځما سره حدیث وے. چه مړشو نو ما په خوب کښ اولیده. دے په ښنو جامو کښ په منډه ګرځیده. ما ورته اووے چه تا به ما سره حدیث وے. نو دا عزت تو نه دغه رنګ بیا مونده. ده اووے چه حدیثونه خو به ما ستا سره لیکل. ولے ما به د حضور نبی صلی الله علیه وسلم سره پخپله درود لیکه. په دے وجه زما دا عزت تو نه او شو. دا کوم چه ته وینے

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۲۵) محمد بن الحسین حرانی وائی چه ځما یو فضل نومے کاونړی دو. ډیر مونږ روژه به پے کول. ده وے چه ما به حدیث لیکل خو درود به مې پکښ نه لیکه. دے وائی چه ما نه خوب نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښ اووے. چه ته ځما

نوم لیکے یا وایے۔ تو درود ولے نہ وایے؟ تو دے وائی۔ ما بیا خوب نبی صلی اللہ علیہ وسلم
پہ خوب کښی اولیدہ۔ او ذوی اووے چہ ستا درود ما تہ رارسی۔ چہ کلہ نوم وایے نو درود وایہ
ربلہم

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۲۶) او دَ دے حرانی بلہ واقعہ دہ۔ دوایے چہ ما خوب نبی صلی اللہ علیہ وسلم پہ
خوب کښی اولیدہ۔ ددوی راتہ اووے۔ دا سلم ولے نہ وایے؟ پہ دے خو تہ دَ څلویښتو
ثوابونو نہ بے برخے کیږے۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۲۷) ابراهیم نسفی وائی۔ چہ ما خوب نبی صلی اللہ علیہ وسلم پہ خوب کښی
خفہ غوندے اولیدہ۔ ما ورتہ دوی لاس نیکل کړہ او عرض م اوکړو چہ زہ خو دَ
احادیثو خدمتگار یم۔ دَ اهل سنتو نہ یم او مسافر یم نو دوی راتہ اووے چہ تہ پہ
درود کښی و سلم ولے نہ وایے؟ دے وائی چہ ما بیا خپل معمول درود او سلام دواړہ
اوګرزول۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۲۸) ابن ابی سلیمان وائی۔ چہ ما خپل مرپلار پہ خوب کښی اولیدہ۔ ما وے څہ حال دے؟
نو دہ راتہ اووے چہ ځما خوښخہ پہ دے اوشوہ۔ چہ ما بہ چہ حدیث لیکہ۔ نو درود
بہ م لیکہ۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۲۹) جعفر بن عبد اللہ وے۔ چہ ما ابو زرعہ لوی محدث پہ خوب کښی اولیدہ
چہ دے پہ اسمان کښی دَ فرښتو امامتی کوی۔ ما وے دا مرتبہ دِ څہ رنګ بیا موندہ۔
دہ وے چہ ما پہ دے لاس لس لاکھہ احادیث لیکلی دی۔ او پہ هر کلہ ادیہ م دَ خوب
نبی صلی اللہ علیہ وسلم دَ نوم سرہ درود او سلام لیکہ۔ او دَ خوب نبی صلی اللہ علیہ
وسلم فرمان وو چہ پہ یو درود باندے لس رحمتونہ خدائی رالیږی۔ ربد یم
نو پہ دے حساب ځما یو کروړ درود ونہ شو۔ نو دَ خدائی پاک یو رحمت هم لوئی څیز
دے۔ او چہ کروړونہ خو فضلونہ فضلونہ دی۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۳۰) د امام شافعیؒ په باره کښ عبدالله بن عبدالحکم وائي. چه ما دے په خوب کښ اولیده. ما وے څه حال دے؟ دوی وے چه ځما خو خدائ بخنه اوکړه. او ځما د پاره جنت ته ولے کړے شه. لکه د ناوے د پاره چه کور ښائسته کولے شي. او په ما داسے شبند ل اوشو. لکه په ناوے چه رد پې پیسے شبند لی شي. ما وے دا مرتبه د په څه بیاموندهٔ. دوی او وے په دے درود صَلَّى اللّٰهُ عَلٰى مُحَمَّدٍ عَدَدَ مَا ذَكَرَهُ الذَّاكِرُونَ وَعَدَدَ مَا غَفَلَ عَنْ ذِكْرِهِ الْغَافِلُوْنَ. او دا درود م په کتاب الرسالة دده په کتاب کښ بیاموند او په یو روایت کښ كُلَّمَا غَفَلَ دے. او د خوبه نبي صلی الله علیه وسلم په باره کښ بیهقي وائي. چه ما د امام شافعیؒ خوئ ابو الحسن ته اووے. چه ما ته خو رنبي صلی الله علیه وسلم په خوب کښ د امام شافعیؒ په باره کښ اووے. چه د دے درود په وجه به دے بے حسابه جنت ته ځي.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۳۱) ابو القاسم مزدری وائي. چه ما او زما پلار په د شپے د حدیث د کتاب مقابله کوله. په خوب کښ داسے اولیدے شو. چه د دے مقابلے په مقام کښ د رنړا یو ستن دے. چه تر اسمانه رسیدلے وه. ... چا اووے دا څه دی؟ نو دوی ته اوښودے شوه. چه دا هغه د مقابلے د وخت درود شریف دے. صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَشَرَّفَ وَكَرَّمَ.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۳۲) ابو اسحق نهشل وے چه ما به په حدیث لیکلو کښ قال النبي صلی الله علیه وسلم تسلیما لیکه. نو ما خو رنبي صلی الله علیه وسلم په خوب کښ اولیده. دوی ما ته اووے چه دا تسلیماً د ډیر ښه دے.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۳۳) حسن بن موسی الحضرمي په ابن عجینه مشهور دے. دا وے چه ما به په تادي کښ حدیث لیکه. او درود به م نه لیکه. نو خو رنبي صلی الله علیه وسلم د لاسه په خوب کښ اووے. چه ته دا درود ولے نه لیکے. دے وائي چه زه ډیر یریدلے ما او یخ شوم. او وعده م اوکړه چه ضرور به درود لیکم.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(٣٤) ابو علي حسن بن علي عطار وائي. چه ماته ابو طاهر د احاديثو يو څو اجزاء اوليږل. په دې کښې صلی الله عليه وسلم تسليما کثيراً کثيراً د خوږ نبي صلی الله عليه وسلم پسې ليکلي وو. ما د ده نه تپوس اوکړو نو ده راته اووے. چه ما به ځوانئ کښې درود نه ليکه. نو خوږ نبي صلی الله عليه وسلم مې په خوب کښې اوليده. ما ورته سلام اوکړو نو دوی راته مخ اونه کړو. په بيا او په بيا ئې مخ اوکړو. څه ور مخامخ شوم. او عرض مې اوکړو. چه دا ولې نو دوی راته اووے. چه ته کتاب ليکے نو څما په نوم پسې درود نه ليکے؟ ځکه اوس دا درود ليکم.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(٣٥) ابو حفص سمرقندي ليکي. چه د يو تاجر دوه ځامن وو. دے چه مړ شه نو د ده د مال په نيمه وېش اوشه. په دې کښې د خوږ نبي صلی الله عليه وسلم درے ويښته مبارک وو. يو يو خو د دواړو اورسيده. د دريم متعلق لوئ ورور اووے. چه دا به نيمه وو. وړوکي اووے. چه داسے کار نه کوم ځکه ده د خوږ نبي صلی الله عليه وسلم د ويښته مبارک دا بے ادبي نه کوم. دے لوئ ورته اووے چه خوښه دِې نه ده چه دا درے وارۀ ته واخلے او دا ټول مال ماته راکړے؟ وړوکي په دے رضا شه. ده به د دے مبارکو ويښتو ډير خيال ساته. دے ته به ئې کاته او په دے به ئې درود وے. لږ ورځې پس د لوئ دا مال خلاص شه. او دا وړوکے ډير مالدار شه. دا وړوکے چه وفات شه. نو يو صالح خوږ نبي صلی الله عليه وسلم په خوب کښې اوليده. او ده ته خوږ نبي صلی الله عليه وسلم اووے. چه د ده د قبر په خوا کښې دِ د خدائ نه سوال کيږي. نو دا به قبليږي. (بديع)

او چه دا لوئ لږ ورځې پس غريب شه ده خوږ نبي صلی الله عليه وسلم په خوب کښې اوليده. او دوی ته ئې د خپلې فقيرئ شکايت اوکړو. خوږ نبي صلی الله عليه وسلم ورته اووے. چه اے بے برخې! تا څما د ويښتو خيال اونه ساته او ستا ورور هغه واغستل. او دے به په دے درود وائي. نو خدائ د ده دنيا او آخرت دواړه نيک کړه. لوئ رو چه راپاسيده. نو د وړوکي خادم شه.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۳۷) یوه شپه د حضرت حسن بصری رحمة الله علیه اودے دے چه خپله لور
مړه ده - زه غواړم چه هغه په خوب کښ لیده شي. دے ورته اووے. چه څلور رکعته
نفل اوکړه. اَلْحَمْدُ او اَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ په هر رکعت کښ دا یه. بیا اوده شه - او
تر خوبه درود شریف وایه. په دے طور به خوب کښ اولیده. او دا په لوئی عذاب
کښ وه - د تارکولو د دے جامے وے. دواړه لاسے تړلی دی. او د دے خپے دا اور په
زنځیرونو کښ تړلے پرتے دی. دا سحر د حسن بصری رحمة الله علیه ورغله. دوی ورته
اووے - چه ته څه خیرات اوکړه. شاید چه خدائی دا د دے عذاب نه خلاصه
کړی. بله شپه حسن بصری رحمة الله علیه جنت په خوب کښ اولیده. چه دغلته یو تخت دے.
او په دے باندے ډیره ښائسته جینئی ناسته ده - او د دے په سر د نور تاج دے.
دے ورته اووے حسنه! تا زه اوپیژندم؟ ده ووے نه؛ دے ورته اووے څه د هغه
بی بی لور یم - چه تا ورته د درود شریف د ... دینا کړے وه. ده ورته اووے چه هغ
خو ته په ډیر بد حال کښ لیدلے دے. او ستا خو دا حال دے؟ دے ووے هغه رښتیا
وے - خو یو نیک بنده د خدائی راغے - او په دے قبرستان کښ ئے یو ځل درود شریف
اووے - او د هغے ثواب ئے دے مقبرے ته اوبخلو - موږ او یا زره په عذاب کښ
کیر خلق د دے عذاب نه خلاص شو - او دا مرتبه خدائی ماته لا دبره راکړه - او
دغسے یوے شپے یو ډیر ګنهګار خوئی مړ شه - او دے مور په لوئی عذاب کښ اولیده
څه وخت پس ئے په ډیر ښه حال کښ اولیده - نو مور ورته اووے. چه دا ولے؟ نو
ده ورته اووے - چه په دے مقبره یو ډیر لوئی ګناهګار تیریده - چه په زړه
کښ ئے ډیره ... راغے - او توبه ګار شه - په ... ئے قرآن شریف اوشی
ګل او ... درود شریف اووے - او د دے ثواب ئے دے مقبرے ته اوبخه زه هم
په دے مقبره کښ وم. نو د دے په برکت زه د عذاب نه خلاص شوم - او دا خوشحالی
مے نصیب شوه. مورے! درود شریف د زړونو رڼا او د ګناهونو کفاره ده -
او د ژوندی او مړی دپاره رحمت دے.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۳۷) کعب احبار د تورات لوئ عالم وو۔ دے وائی چه موسیٰ علیه السلام ته وحی اوشوه۔ چه که په دنیا کښې څوک حمد وثنا ویونکی نه وے۔ نو د اسمان نه به یو ساسکے نه وو شوے او د زمکے نه به یوه دانه نه وه راټوکیدے۔ او بیا یې ورته اووئیل۔ چه ته غواړے چه تا ته د دے نه هم زیات نزدے شم خو مرهٔ چه خبرے ستا د ژبے سره نزدے دی۔ او خومرهٔ چه خطرات ستا د زړه سره نزدے دی۔ او خومرهٔ چه روح ستا د بدن سره نزدے دے۔ او رڼا ستا د سترګو سره نزدے ده۔ ده عرض اوکړو چه او۔ نو خدائ اووے چه په محمد (صلی الله علیه وسلم) درود ډیر وایه۔

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا أَبَدًا ... عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۳۸) محمد بن سعید بن مطرف یو نیک بزرګ وو۔ ده به د شپے د خاص مقدار درود وے یوه شپه ده خوب بنی صلی الله د ځان سره اولیده۔ او د دوی په وجه ده خپل کور رڼا شو دوی نه اوليد دوی مانه اووے۔ دا خوله دِ را نزدے کړه۔ ته په ما په دے درود لولے۔ چه دا ښکل کړم۔ نو ما خپله خوله د دوی د خولے مبارکے د ښکلولو قابله اونه لیده۔ ما ورته مخ نزدے کړو۔ نو دوی حُما مخ ښکل کړو۔ په دیکښې زه را اویخ شوم۔ او په ویره کښې وَم بی بی م هم را ویخ شوه ټول کور چه هتوله بالاخانه د خوشبوئی نه ډکه ده۔ او حُما د مخ نه اته ورځے د مشکو خوشبوئی راتله

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا أَبَدًا ... عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۳۹) محمد بن مالک وائی۔ چه زه بغداد ته د قاری ابو بکر بن مجاهد سره د سبق لوستو د پاره لاړم۔ درس روان وو۔ چه په دے کښې یو بڼکه زړے جامے پی اغوستے وے۔ راغے قاری صاحب ورته پاسیده۔ په خپل ځائ یې کینو۔ بیو سره یې ترے اوکړه۔ بڼکه ورکړ او د بیکام خوئ شوے دے۔ د کورخلقو را ته د غوړو او کیبن وینا کړیده۔ قاری ابوبکر حیران شه۔ او په دے غم کښې پرکاله شه۔ په خوب کښې یې خوب بنی صلی الله علیه وسلم اولیده۔ دوی ورته اووے چه ولے دومرهٔ فکرمند یې۔ ورشه علی بن عیسیٰ وزیر ته او وایه او حُما سلام ورته اوکړه۔ چه دے بابا ته سل اشرفئ ورکړه۔ او څه ورته دا او وایه چه چه ته هره جمعه په خوب بنی صلی الله علیه وسلم درود وایے۔ خو په دے جمعه دِ اوه شو کم اوو اووے۔ بیا باچا او غوښتے۔ چه بیرته را غلے نو د ټے سوه دِ بیا اووے قاری ابوبکر د دے بوډا سره وزیر ته ورغے۔ او ده ته یې اووے چه دا بوډا ستا سره خوب بنی صلی الله علیه وسلم را لیږلے دے۔ وزیر دے په خپل ځائ کینو۔ او د ده ادب عزت

بیئ اوکړو. ابوبکر ده ته د خوب قصه اوکړه. په دے وزیر ډیر خوشحاله شه. او د لسو زرو اشرفو تهیلئ یې راوغوښته. د دے نه یې سل اشرفئ یا یاته ورکړے. بیا یې سل نورے ابوبکر ته ورکولے. ځکه چه تا ماته د زړه کښ اود درود و ویلو دایو راز وو حال اووے. دا صرف ماته او خدائ ته معلوم وو. بیا یې سل اشرفئ د دے د پاره ورکولے. بیا یې سل اشرفئ صرف د دے د پاره ورکولے چه خوب نبی صلی الله علیه وسلم زما د درود نه خبر دے. او سل اشرفئ د دے په بدله کښ چه ابوبکره تا دلته د را تلو تکلیف کړیدے. دغسے یې سل اشرفئ را اوبنکے تر دے چه زر دوارلسه اشرفئ یې را او بښکے. لیکن قاری ابوبکر ورته اووے. چه زه صرف د یاد سلو اشرفو د پاره راغلے یم. د نورو اغستو ته تیار نه یم. ابوبکر ورته ټولے بیرته کړے.

یا رب صل وسلم دائما ابدا　　علی حبیبک خیر الخلق کلهم

(۴۰) عبدالرحیم بن عبدالرحمان وائی. چه زه په غسل خانه کښ اوغورزیدم. نو لاس مې خوږ شه. او اوپړسیده. د شپے ډیرے آرام نه وم. په خوب کښ مې خوب نبی صلی الله علیه وسلم اولیده. ما ئې عرض کړے وو. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم او وے. ستا درود شریف خوځه ډیرے آرام نه کړم. په ډیکښ را ویښ شوم او چرم اوکاته نو تکلیف مې نه وو. او نه پړسوب وو.

یا رب صل وسلم دائما ابدا　　علی حبیبک خیر الخلق کلهم

(۴۱) د شیخ احمد بن سلان یو شاګرد خوب اولیده. چه د علامه سخاوی په درود قول بدیع د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښ پیش شه. او دا تحفه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم قبوله کړه. د دے وفضائل درود اکثر مضامین د دے قول بدیع نه نقل دی. نو ځکه چه قول بدیع خوږ نبی صلی الله علیه وسلم قبول کړیدے. مولانا وائی. زه هم امید لرم. چه زما دا فضائل درود به هم خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته قبول دی. او هر چا ته بکار دی. چه په زړه او ژبه د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم درود ډیر ډیر وائیئ. دا درودونه د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم قبر ته وړے شی. صلی الله علیه وعلی آله واصحبه واتباعه وسلم تسلیما کثیرا کثیرا کلما ذکره الذاکرون وکلما غفل عن ذکره الغافلون.

یا رب صل وسلم دائما ابدا　　علی حبیبک خیر الخلق کلهم

(۴۲) علامه سخاوی وائی. ابوبکر بن محمد د ابوبکر بن مجاهد سره وو. په دیکښې شیخ المشائخ شبلی راغے. نو ابوبکر بن مجاهد ورته اودریده. ورسره غاړه وټ. اوتندے یې ورله ښکل کړو. ما ورے چه تاسو او د بغداد علماء خو ده ته لیونے وایئ. ده راته اووے چه ما د خوب نبی صلی الله علیه وسلم هسے کار اوکړو. بیا یې اووے چه ما خوب نبی صلی الله علیه وسلم په خوب کښې اولیدلو. او د ده سره شبلی راغے. نو خوب نبی صلی الله علیه وسلم یې ښکل کړو. او ورتر غاړه وټ. ما د خوب نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو. دوی راته اووے. چه دے د هر مانځه نه پس لقد جاءکم تر آخره اوبیا درود وائی. او په یو روایت کښې د فرض مونځ نه پس درے کرته ده درود راغلے دے. چه صَلَّى اللهُ عَلَيْكَ يَا مُحَمَّدُ دے. ابوبکر وے چه حمًا سره شبلی راغے. نو ما ترے تپوس اوکړو. چه ته د مانځه نه روستو څه وائې نو ده راته اووے چه لقد جاءکم او درود وایم. چه ابوبکر ته شاگرد انو اووے. چه ته خو زیر ته هم ته پاسے. نو دے شبلی څه رنګ پاسیدے. نو ده ورته اووے چه هر کله خوب نبی صلی الله علیه وسلم ده ته پاسی نو زه په څه رنګ نه پاسم. داهغه اکرام وو. چه ابوبکر د شبلی اوکړو. د شبلی د جنتی والی خوب نبی صلی الله علیه وسلم ابوبکر ته ویلی وو. او چه ابوبکر د ده عزت اوکړو. نو بیا خوب نبی صلی الله علیه وسلم ده ته اووے. چه خدائ د ستا د غسے عزت اوکړی. لکه چه تا د شبلی اوکړو. په یو روایت کښې د شبلی اشیا کرته اله د درود ذکر دے.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا أَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۴۳) په احیاء کښې عبدالواحد بن زید وائی. چه زه د یو ملګری سره د حج په سفر تلم. ده به په هره ناسته کښې او ولاړه کښې درود شریف وے. ما ورے دا عادت د ولے دے. ده وے چه زه مخکښې د پلار سره حج ته راغلے وم. چه بیرته تلو نو مونږ په یو مقام کښې اوده شو په خوب کښې راته چا اووے. چه پاسه پلار د مړشه او د ده مخ توردے. زه پاسیدم او واتې د نغه مخ تور وو.

مړوو. زه په دے ډیر غمژن شوم. په دیکښ زه بیا اوده شوم نو بیا مې خوب
اولیده. چه څلور حبشیان تور مخي چه د او سپینے ډنډے ورسره دي. په پلار مې
اولاړ دي. په دیکښ یو بزرګ خاښته دوه شنے جامے اغوستے وے. راغے
او د ده داتور رنګي یئ لرے کړه. او ځما د پلار په مخ یئ لاس را اښکه. او ما
یئ اووے چه پاسه د پلار مخ د سپین شه. ما دے سنکاییه! ته څوک یئ؟
ده را ته اووے چه زه محمد (صلی الله علیه وسلم) یم. د دینه پس ما درود
نه دے پریښے.

او د دے قسم واقعه ده. چه د دے څوئ د پلار مخ د سور هسے شه. ځوئ
یئ ډیر اوژړل. چه اوده شه. نو په خوب کښ ورته او ښودے شوه. چه
ستا دے پلار په سود خوړ. ځکه د ده نه خنزیر جوړ شه. خو خوږ نبی صلی
الله علیه وسلم د ده سفارش اوکړو. ځکه چه ده به د خوږ نبی صلی الله
علیه وسلم په نوم اوریدو درود شریف وے. نو د ده شکل په اصلی
حالت شه.

سفیان ثوری د غه شان د ډیر درود ویونکی نه تپوس اوکړو. نو
ده ورته هم د پلار د مرګ د مخ د تورولی قصه اوکړه. چه دے راغے.
او ځما د پلار په مخ یئ لاس را اښکه. او د ده مخ سپین شه. دا څوئ وائي.
ما د ده لمن اونیوه. چه ته څوک یئ چه په مونږ د دومره رحم او احسان
اوکړو. نو ده را ته اووے. چه زه محمد (صلی الله علیه وسلم) بن عبدالله
یم. چه صاحب قرآن یم. او زه هغه چا ته په سختئ کښ رسیږم. څوک چه
په ما درود وائي.

(۱) یَامَنْ یُّجِیْبُ دُعَا الْمُضْطَرِّ فِی الظُّلَمِ — یَا کَاشِفَ الضُّرِّ وَ الْبَلْوٰی مَعَ السَّقَمِ

اے هغه خدایه چه په تیارو کښ دعا قبلوے — او اے الله چه ضرر و نه بلا او ناجوړتیا کانے لرے کوے

(۲) شَفِّعْ نَبِیَّکَ فِیْ ذُلِّیْ وَ مَسْکَنَتِیْ — وَاسْتُرْ فَاِنَّکَ ذُوْ فَضْلٍ وَّ ذُوْ کَرَمٍ

د خوږ نبی علیه السلام سفارش زما په ذلت او عاجزئ کښ قبول کړے — او ځما په ګناهونو پړده واچوے ته ډیر فضل او احسان کونکے ئے

(۳) وَاغْفِرْ ذُنُوْبِیْ وَ سَامِحْنِیْ بِهَا کَرَمًا — تَفَضُّلًا مِّنْکَ یَا ذَا الْفَضْلِ وَ النِّعَمِ

او ځما ګناهونه معاف کړے او د دینه مخ واړوے د کرم په وجه — اے د فضل او د نعمتونو مالکه!

(۴) إِنْ لَّمْ تُغِثْنِيْ بِعَفْوٍ مِنْكَ يَا أَمَلِيْ ... وَاخَجْلَتِيْ وَاحَيَائِيْ مِنْكَ وَاسَدَمِيْ

اے خدا! امید ځایه! که ته په معافئ خلاصه نه کړے — نو زه به ډیر شرمنده او نادم اوګرځم

(۵) يَا رَبِّ صَلِّ عَلَى الْهَادِي الْبَشِيْرِ وَمَنْ ... لَهُ الشَّفَاعَةُ فِي الْعَاصِيْ أَخِي النَّدَمِ

اے خدا درود اولیږه په هغه خوږ نبي علیه السلام هادی بوی او کوم نگی — چه د شفاعت حق لری د ګناهګارو او شرمسارو دپاره

(۶) يَا رَبِّ صَلِّ عَلَى الْمُخْتَارِ مِنْ مُضَرٍ ... أَزْكَى الْخَلَائِقِ مِنْ عَرَبٍ وَمِنْ عَجَمٍ

اے ربه درود اولیږه په هغه ذات چه د مضر غوره دے — او په ټول عربي او عجمي مخلوق کښې غوره دے

(۷) يَا رَبِّ صَلِّ عَلَى خَيْرِ الْأَنَامِ وَمَنْ ... سَادَ الْقَبَائِلَ فِي الْأَنْسَابِ وَالشِّيَمِ

اے ربه درود اولیږه په غوره د ټولو خلقو — او هغه چه د ټولو قبیلو په نسب او خوئ کښې سردار دے

(۸) صَلِّ عَلَيْهِ الَّذِيْ أَعْطَاهُ مَنْزِلَةً ... عُلْيَاءَ إِذَا كَانَ حَقًّا أَفْضَلَ الْأُمَمِ

خاچه ده ته لویه مرتبه ورکړې ده په هغه درود اولیږه — او بیائے د خدائے دپاره محبوب کړو او دے حق لره غوره په ټولو کښې

(۹) صَلِّ عَلَيْهِ الَّذِيْ أَعْطَاهُ مَرْتَبَةً ... ثُمَّ اصْطَفَاهُ حَبِيْبًا بَارِئُ النَّسَمِ

پاک ذات دپاره درود اولیږه چه ده ته ئے لویه مرتبه ورکړه — بیائے د محبوب والی دپاره چونړکړو چه د مخلوق پیدا کونکے دے

(۱۰) صَلِّ عَلَيْهِ صَلٰوةً لَا انْقِطَاعَ لَهَا ... مَوْلَاهُ ثُمَّ عَلَى صَحْبٍ وَذِي رَحِمٍ

د ده خدائے دِ په ده داسے درود اولیږی چه نه ختمیږی — بیا د ده په اصحابو او د ده په خپلوانو باندے

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا أَبَدًا ... عَلَى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۱۴) په نزهة المجالس کښې لیکی. چه د یو صاحب ځنکدن وو. چاچه ترے تپوس اوکړو. چه د مرګ تریخوالے څه رنګ دے. ده ورته اووے چه زه خو پیرے نه پوهیږم. ځکه چه ما د عالمانو نه اوریدلی دی. چه څوک درود شریف وائی هغه به د مرګ د تریخوالی نه بچ وی.

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا أَبَدًا ... عَلَى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۱۵) د یو صالح په ورے یولے بند بیدے. نو ده په خوب کښې شیخ شهاب الدین اولیده. چه لوئی زاهد او عالم وو. دے صالح ده ته شکایت اوکړو. شیخ ورته اووے چه دا مجرب درود وایه.

اَللّٰهُمَّ صَلِّ وَسَلِّمْ عَلٰى رُوْحِ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ فِي الْأَرْوَاحِ وَصَلِّ وَسَلِّمْ عَلٰى قَلْبِ مُحَمَّدٍ فِي الْقُلُوْبِ وَصَلِّ وَسَلِّمْ عَلٰى جَسَدِ مُحَمَّدٍ فِي الْأَجْسَادِ وَصَلِّ وَسَلِّمْ

عَلٰی قَبْرِ سَیِّدِنَا مُحَمَّدٍ فِی الْقُبُوْرِ۔ دَ هٔ دَ دے وظیفه شروع کړه ۔ او په دے دا مرض لاړلو۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَ سَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۷۸) سفیان ثوري یو ځوان اولیده۔ چه دهٔ به په هر قدم درود شریف وے۔ دهٔ ترے تپوس اوکړو چه دا عمل په څه وجه کوے؟ دهٔ وے چه د مور سره حج ته تلے ووم۔ دا هلته مړه شوه۔ او مخ یې تور شه۔ کیټه پېټ اوپرسیده۔ ماوے دے به ډیره لویه ګناه کړے وی۔ ما دَ دے دَ پاره دعا شروع کړه۔ په دے کښ دَ حجاز دَ غاړے نه یو وریځ کښ یو سړے را ښکاره شه۔ دهٔ خپل دَ مور په مخ لاس راښکه۔ نو دَ دے مخ روښانه شه اوکیټه یې ښکته شوه۔ ماوے ښکلیه! بنده دا ته څوک یې؟ چه دا دومره مهربانی دِ اوکړه۔ دهٔ راته اووے۔ چه زهٔ ستا نبی (صلی الله علیه وسلم) یم۔ ما ورته عرض اوکړو چه ما ته څه وصیت اوکړه۔ دهٔ راته اووے چه په هر قدم دا درود وایه۔ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَ سَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۷۹) صاحب د احیاء لیکی۔ چه هر کله خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وفات شه۔ نو حضرت عمر رضی الله تعالیٰ عنه ژړل۔ او دا به یې وے چه له تا قربان شم۔ چه د کجورے یو تنه چه تا به په دے تکیه لګوله۔ ستا د ممبر په کینا ستو تا پسے ژاړی۔ تر دے چه تا پرے لاس مبارک کیخودو نو قلاره شوه۔ نو ستا امت ته خو پکار دی چه ستا په فراق کښ ډیر اوژاړی۔ او ته دومره د لویې مرتبے نبی (صلی الله علیه وسلم) یې۔ چه خدائ ستا اطاعت ته خپل اطاعت اووے۔ او ته خدائ ته دومره مقبول یې چه ستا نه د مطالبے نه مخکښ تا ته د معافئ ویناکوی۔ عَفَا اللهُ عَنْکَ لِمَ اَذِنْتَ لَهُمْ۔ او ته سره د روستو راتلو نه د مخکنو نه مخکښ په میثاق کښ ذکر یې۔ وَاِذْ اَخَذْنَا مِنَ النَّبِیّٖنَ مِیْثَاقَهُمْ وَمِنْکَ وَمِنْ

نوحؑ وَ اِبْرَاهِیمْ ۔ او کافران چه په جهنم کښې او غورزولے شی۔ نو دوی به دغلته دا خواهش لری۔ چه دوی ستا تابعداری کړے وے۔ یَا لَیْتَنَا اَطَعْنَا اللّٰهَ وَ اَطَعْنَا الرَّسُوْل ۔ ځما مور پلار در نه قربان شه که موسیٰ ته یئے دَ کیڼې نه دَ اوبو اوښکو معجزه ورکړه۔ نو ستا دَ ګوتو نه یئے او به جاری کړے۔ او که سلیمان به په هوا کښې په تخت دَ میاشتے سفر دَ سحر قدرے په وخت کښې واهه۔ نو ته براق دَ شپے په وخت کښې دَ اوم اسمان نه بره بوتلے۔ او په تا خدائ پخپله درود وائی۔ او که تیرو پیغمبرانو مړی ژوندی کړیدی نو تا ته پخے شوے اووے چه ما مه خوره ما کښې زهر دی۔ او نوح علیه السلام خو خپل قوم ته رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْاَرْضِ مِنَ الْكَافِرِيْنَ دَيَّارًا ۔ وائی او ستا په شا مبارک کے پلیتی کافران کدی۔ ستا غاښونه شهیدان کوی۔ ولے ته وایئے۔ چه اَللّٰهُمَّ اهْدِ قَوْمِيْ فَاِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ه ستا په درویشت کاله پیغمبرئ کښې په آخری حج کښې یو لکھ څلیریشت زره ملګری مسلمانان جمع کوی۔ او نوحؑ په زر کاله کښې ټک خلق مسلمانوی۔ خدائ وائی وَمَا آمَنَ مِنْهُمْ اِلَّا قَلِيْلٌ ۔ خوږه نبی (صلی الله علیه وسلم) له تا قربان شم۔ که تا یوا ځے دَ ځان هسے خلقو سره ناسته کولے۔ نو ته به زمونږ سره چرے نه وے ناست۔ او که دَ خپل برابر سره دِ نکاح کولے۔ نو زمونږ لونړه خو بند و سره به دِ نکاح نه وو کړے۔ او که تا دَ خپل برابر خلقو سره ډوډئ خوړے۔ نو ځمونږ سره به په خوراک نه وے ناست۔ خوږه نبی (صلی الله علیه وسلم) ستا ځمونږ دَ خلقو دَ لونړو سره دِ نکاح اوکړو۔ دَ ویښتو جامے دِ واغوستے۔ په خره دِ سورلی اوکړه۔ او په ځان پسے دِ بل ملګرے سور کړو۔ او په زمکه دِ په دسترخوان ډوډئ زمونږ سره اوخوړه۔ او ګوتے به خپلے ژبے او ستلے۔ دا ټوله ستا تواضع او عاجزی وه۔ صلی الله علیک وسلم:

يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ

(۴۸) حضرت ابراهیم خواص وائي. چه زه په سفر کښې تلی شوم. او د تندے
په وجه بې هوښه او غورځیدم. چا ځما په مخ اوبه ترمکیا کړے. ما چه
سترګے او غړولے نو یو ښکلی بزرګ م په اس سور اولیده. ده په ما اوبه
اوڅکولے. او ما ته یې اووے چه ته ځما سره یه. لږ ساعت پس یې اووے
داځه مقام دے. ما ووے دا مدینه ده. ده ووے ته ورځه او خوږ نبی صلی الله
علیه وسلم ته ځما سلام اووایه. چه حضرت ستا درود تا ته سلام کوؤ.
زه د علت څلور پنځه ورځے ووم. ما د خوږ نبی صلی الله علیه ابوبکر رض او عمر رض
سلامونه اوکړه. بیا د میر شاته اودده شوم. په خوب کښې م خوږ نبی صلی
الله علیه وسلم ابوبکر رض او عمر رض اولیده. دوی یو خوا بل خوا ناست وو. او علی رض
ورته مخامخ ناست وو. ما د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم تندے مبارک ښکل
کړو. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ما ته ډوډۍ راکړه. ما نیمه اوخوړه.
او چه راویښ شومه. نو نیمه م په لاس کښې وه. د دے قسم د خوږ نبی صلی
الله علیه وسلم د ډوډۍ ورکولو ډیر واقعات په مختلفو کتابونو کښې راغلي دي.
لکه چا ته ویل چه فلانکی ته ډیر یو سه. او داځه عجیبه نه ده. هرکله چه د
صوفیانو په توجه ډوډۍ یا پیسے رسیږي څه د تعجب خبره نه ده. شاه ولی الله صاحب رح
د خپل پلار په باره کښې لیکي. چه هغوی ناجوړه وو. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
م پلار اولیده. چه ګنټے د شفا زیرے ورکړو. او دوی ته یې دوه خپل ویښته
مبارک ورکړه. او دغه ویښته مبارک د ویښیدو نه پس د ده په لاس کښې وو.
شاه صاحب وائي چه والد صاحب یو بیا ما ته راکړو. ددوی والد صاحب ترے هم
ډوډۍ په خوب کښې ورکړے ده. او ابوبکر رض او عمر رض ترے خپله برسنه غوښتے ده او
دوی ورته ورکړے ده. دوی به ورته وے. چه اَلْهُدَ اَیَا مُشْتَرَکَةٌ خو پلار مے
حضرت عثمان رض ته ورنکړه او د دے تیتۍ بیا د خوب نه پس دا دلیل ښکاره کړو.
د شیخینو سره ځما نسبی او د سلسلے تعلق وو. او د عثمان رض سره م نه وو.

ځکه هم هغوی ته ورکړه او حضرت عثمانؓ ته هم ورنکړه۔ دامادی برکات دی۔
ځکه چه اَجْوَدُ النَّاسِ سَیِّدُ الْکَوْنَیْنِ عَلَیْهِ اَفْضَلُ الصَّلٰوةِ وَ التَّسْلِیْمِ ۔ دغسے دوالد
په قصو کښې دوی ته د خوب نبی صلی الله علیه وسلم د طرف نه په خوب کښې پلاؤ
زردکا د زعفرانو خوشبو په او یخ او به ورکړے شوی دی ۔ اوچه ویخ شو نو
هغیسے یې د لاسونو دغه خوشبو یې تله ۔ په دے قصو کښې تردد نه دے پکار۔ ځکه چه
د وصال په روجو کښې دی ۔ وایی اِنِّیْ یُطْعِمُنِیْ وَ یَسْقِیْنِیْ او د خوب نبی صلی الله علیه
وسلم دا فرمان چه اِنِّیْ لَسْتُ کَهَیْئَتِکُمْ نو که خو اصو ته دا قسم مادی امداد د خوب
نبی صلی الله علیه وسلم د لاسه اورسی ۔ نو دا څه عجیبه نه ده ۔ ځکه چه کرامت د
اولیاؤ خو حق دے ۔ او د حضرت مریمؑ په قصه کښې قرآن شریف وایی ۔ کُلَّمَا دَخَلَ
عَلَیْهَا زَکَرِیَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ۔ د دوی سره په هر قسم څیز بے موسمه
موجود وو ۔ د سرځی میوے او د سرځی په گرمئ کښې ۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

(۹۴) په نزهة المجالس کښې د شپے او د ورځے مناظره ده ۔ نو ورځے اووے
چه په ما کښې دا رے فرض او په تا کښې دوه مونځونه دی په ما کښې جمعه ده ۔ او په
دیکښې د دعا د قبلید و وخت دے ۔ چه هر څه پکښې خدائے ورکوی ۔ په ما کښې
رمضان دے ۔ خلق پکښې روژے نیسی ۔ شپے په تا کښې خو خلق غافله وی ۔ او په
ما کښې خلق کار روزه کوی ۔ په ما کښې تمر تبوله دنیا روښانه کړی ۔ شپے ورته
او وے ۔ چه ستا که نمر دے ۔ نو څما نمر د خدائے خلقو زړونه دی ۔ چه پدے
کښې تهجد او راز و نیاز کوی ۔ دوی په خلوت کښې حبا سخه پټ ناست وی ۔ په ما
کښې خو نبی صلی الله علیه وسلم معراج کړے وو ۔ او زه ستاسو څنګښې پیدا یم ۔
په ما کښې لیلة القدر دے ۔ چه په دیکښې په زرګونو ورکړه کیږی ۔ په آخری
شپه کښې خدائے وایی ۔ څوک غو ښتونکی شته ۔ چه ورکړم ۔ څوک توبه او بنکو ونکی
شته چه توبه یے قبوله کړم ۔ او خدائے وایی ۔ یَا اَیُّهَا الْمُزَّمِّلُ ۔ قُمِ اللَّیْلَ اِلَّا قَلِیْلًا

او سُبْحَانَ الَّذِیْ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ لَیْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَی الْمَسْجِدِ الْاَقْصٰی۔
دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په معجزاتو کښې لوئ خلاف عادت واقعه
ده۔ په دیکښې دے دَ خدائ سره رازو نیاز کوی۔ دَ تیرو پیغمبرانو ملاقاتونه
کوی۔ او دَ دوی امامت کوی۔ او تر سِدْرَةُ المنتهٰی تله کوی۔ لَقَدْ رَاٰی مِنْ
اٰیٰتِ رَبِّهِ الْکُبْرٰی۔ دا قصه صاحب دَ بردے مختصره لیکلی ده۔ او حضرت تهانوی رح
په نشر الطیب کښې سره دَ ترجمے لیکلی ده۔ نو زه دا نقل کوم۔

(۱) سَرَیْتَ مِنْ حَرَمٍ لَیْلًا اِلٰی حَرَمٍ
ته دَ مکے نه مسجد اقصٰی ته داسے لاړے
کَمَا سَرَی الْبَدْرُ فِیْ دَاجٍ مِّنَ الظُّلَمِ
لکه سپوږمئ دَ خوارلسمے چه په تیرے کښې تګ کوی

(۲) وَبِتَّ تَرْقٰی اِلٰی اَنْ نِلْتَ مَنْزِلَةً
او تا په ترقئ کښې شپه تیره کړه او داسے مرتبے ته اورسیدے
مِنْ قَابَ قَوْسَیْنِ لَمْ تُدْرَکْ وَلَمْ تُرَمِ
چه دیته هیڅوک نه دی رسیدلی او نه یې غوښتے ده

(۳) وَقَدَّمَتْکَ جَمِیْعُ الْاَنْبِیَاءِ بِهَا
او ته ټولو پیغمبرانو امام کړے
وَالرُّسْلُ تَقْدِیْمَ مَخْدُوْمٍ عَلٰی خَدَمٍ
لکه مخدوم چه دَ خادمانو مشر او امام وی

(۴) وَاَنْتَ تَخْتَرِقُ السَّبْعَ الطِّبَاقَ بِهِمْ
او اووه واړه اسمانونه لاندے باندے دِ شلول
فِیْ مَوْکِبٍ کُنْتَ فِیْهِ صَاحِبَ الْعَلَمِ
په ټولګی دَ ملائکو کښې او ته دَ جهنډے خاوند وے

(۵) حَتّٰی اِذَا لَمْ تَدَعْ شَاْوًا لِّمُسْتَبِقٍ
تر دے چه مخکښې کیدونکی ته نزدے والے پاتے نه شه
مِنَ الدُّنُوِّ وَلَا مَرْقًی لِّمُسْتَنِمِ
او نه دَ پورته ختونکی دپاره دَ ستونئ موقع

(۶) خَفَضْتَ کُلَّ مَکَانٍ بِالْاِضَافَةِ اِذْ
تا دَ ځان په مقابله کښې دَ هر چا مقام ښکته کړو
نُوْدِیْتَ بِالرَّفْعِ مِثْلَ الْمُفْرَدِ الْعَلَمِ
چه تا ته آواز اوشه په شان دَ یے مثله مشهور بنده

(۷) کَیْمَا تَفُوْزَ بِوَصْلٍ اَیِّ مُسْتَتِرٍ
چه ته کامیاب شے په هغه وصال باندے چه دَ
عَنِ الْعُیُوْنِ وَسِرٍّ اَیِّ مُکْتَتَمِ
سترګو نه پټ وو۔ او ته په راز خبردار شوے۔

یَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا
عَلٰی حَبِیْبِکَ خَیْرِ الْخَلْقِ کُلِّهِمِ

# مثنوی د مولانا جامی رح

(۵) مولانا صاحب په خوب کښې لیدلی وو. چه ته په فضائل درود کښې قصیده هم لیکه. مولانا صاحب ته خاص قصیده نه وه ښودلے شوے. ځکه دوی څه قدر اشعار د بردے او لیکل. کوم چه تیر شو. او څه قدرے یې د مثنوی د مولانا جامی او لیکل. په دیکښې د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم صفت دے. دا اشعار په فارسئ کښې دی. ځکه زه یې صرف د پښتو ترجمه لیکم. پښتانه به یې په مطلب پو یه شی. مولانا جامی لیکی. چه ما ته پلار دوئلی وو. چه دا داسے اشعار دی چه په دے کښې ډیر عشق دے. او خوږ نبی صلی الله علیه وسلم امیر مکه ته ویلی وو. چه مولانا جامیؒ ما ته راپریږده. نو ده دے قید کړو. خو په درایم کذا را یې ورته اووے. چه دے مجرم نه دے. که دے څما سخه راغے. او دا مثنوی یې څما د قبر سخه اووے. نو زه به ورته لاس د قبره را اوباسم چه د ده سره لاس ملاؤ کړم. نو په دے به فتنه پیدا شی. او دا قسم واقعات شوی دی.

## ترجمه د مثنوی د مولانا جامیؒ

(۱) ستا په فراق کښې د کائنات عالم ذره ذره ساه په خُله ده. او ساترے خیږی نو کرم او رحم اوکړه.

(۲) خوږه نبی (صلی الله علیه وسلم) ته د عالمو د پاره رحمت یې. نو ته به موږ بد قسمته و هیرو لے

(۳) اے د ګل لاله هسے خوش رنګه ته په دے خوشبوئی دنیا ته فائده ورکړه. او د نرګسی خوب نه راویښ شه. او موږ د هدایت ستا زو ته د زړه ونو رڼا را کړه.

اے دَ یثرب په پرده پټه نبی! (علیه السلام)
پاسه مشرق او مغرب ټول ځي خراب شو

(۴) دَ یمنی څادرو دَ کفن نه سر راپورته کړه. ستا مبارک مخ دَ ژوند صبا دے.
(۵) څمونږ دا غمژن نه شپه ورځ کړه. او څمونږ ورځ ته په خپل ښائست کښې او فتوحات ورکړه.
(۶) په خپل مبارک وجود دَ ژوندون هسے دَ عطرو ږ کے جامے واچوه. او دَ کافورو هسے پټکے په سر کړه. (۷) خپلے عنبری او مشکینے زلفے دَ سر مبارک ذوږ ند ے کړه. چه دَ دے نه په قدمونو سورے جوړ شی.
(۸) دَ طائف ښکلے پیزار په خپو کړه. او زمونږ دروح نه دَ دے تسمے جوړے کړه.
(۹) څه به ښه وی که زه درته در اوږسم او په خپلو سترګو ستا دَ کور دَ کوڅے خاورے اولګوم.

خدائ دِکړی چه زه حاضر شم مدینے ته ؛ ستا دَ کوڅکوڅے خاورے کړم راجه

(۱۰) ستا په جمات کښ دوه رکعته دَ شکرانے اوکړم. او ستا دَ روضے پتنګ شم.
(۱۱) لیونے سپیلنے دَ روضے او ګنبدِ خضرا چکرے اولګوم څکه چه زړه م غلبیل غلبیل دے
(۱۲) په حرم او مبارکے روضے او ستا سو په کور مبارک م دَ خو بړنو سترګو دود یڅو نه دَ اوښکو باران وَروے.
(۱۳) کله م په حرم کښ جهارو وهلے. اوکړ دونه م لپے کولے. او کله م څخنړی ټولولے او ځان م پرے خوشحالولے.
(۱۴) خدائی دِکړی. چه ته زمونږ دَ ګناهونو په وجه کوځ سترګے نه یې. او څمونږ په امتی امتی چغو شفاعت اوکړے.
(۱۵) خوږه نبی (صلی الله علیه وسلم) ستا او دَ خدائ دَ مقبولو بندګانو په طفیل رحمان غریب جامی کار جوړ شی.

دا سیدن به دَ نیکانو په طفیل !
شی را خلاص که وی قایل دَ نوی جیل

وروستے مولانا ذکریا صاحب دَ مولانا قاسم صاحب بانی دار العلوم دیوبند دَیو اردو قصیدے څه قدرے اردو اشعار لیکلی دی. زهٔ دَیو څو بیتونو پښتو ترجمه لیکم.

# قصیدهٔ دَ مولانا محمّد قاسمؒ بانی دار العلوم دیوبند!

(۱) دا بلبل به نن ولے چغے نه وهی. چه په باغ نو کښ نوے سپرلے را غلیدے.

(۲) دے هر چا ته دَ دهٔ منا سب خوشحالی ورکوی. چا ته پا نڑے چا ته ګل او چا ته میوے.

(۳) دَ خوږ نبی (علیه السلام) دَ کوڅے دَ خاورے نه دَ اسمان نمر او سپوږ مئ شرم او وړخ شرمنده دی.

(۴) په اسمان کښ که عیسیٰؑ او ادریسؑ وی نو وی به. په زمکه کښ دَ محمد (صلی الله علیه وسلم) دنیا ګانے دی.

(۵) قاسمه ته صرف دَ محمدؐ (علیه السلام) تعریف کوه. نو ریږ یږ دهٔ. څه به یے شپنکے وی. څه باغ. او څه سپرلے.

(۶) دَ ادب مقام دے. چپ شه ډیه بند که کړه. دَ دهٔ په تعریف کښ نور څه مه لیکه.

(۷) بس په دهٔ او دَ دهٔ په آل درود وایه. چه دے او دَ دهٔ اولاد پاک درنه خوشحاله شی.

(۸) خدایه! په دهٔ دو مره بے شماره رحمتونه اولیږه. چه شمیر لے نه شی. او دَ دهٔ په اولاد هم.

---

خدائے دِ ماته هغه خطائیی معاف کړی چه ما نه په دے رساله کښ شوی دی (آمین)

محمّد زکریا عفی عنه کاندهلوی مقیم مدرسه مظاهر علوم
سهارنپور
(پښتو ترجمه)

حبیب الرحمان. دار التصنیف روستم. ضلع مردان!

دَ ملاویدو پته: (۱) مولانا حبیب الرحمان صاحب دار التصنیف. روستم (مردان)
(۲) انواری کتب خانه تخت بهائی (مردان)

# د دار التصنیف روستم

# چهاپ شوي کتابونه

| کتاب | | |
|---|---|---|
| (۱) تفسیر حبیبي پښتو دیرش واړه پاړې | ۰ | ۶۰ |
| (۲) تشریح بخاري ـ اولس پاړې | ۰ | ۴۰ |
| (۳) دَ حج تحفه پښتو | ۲۵ | ۱ |
| (۴) فضائل تبلیغ | ۵۰ | ۰ |
| (۵) فضائل نماز | ۰ | ۱ |
| (۶) فضائل قرآن | ۰ | ۱ |
| فضائل ذکر | ۰ | 2 |

یادګیرنه:-

دَ تفسیر حبیبي یوه پاره په دوه روپئ ـ او دَ تشریح بخاري یوه پاره په دوه نیمې روپئ ځان ځان ته هم راغوښتې شي ـ

د ملاویدو پته

**شیخ التفسیر مولانا حبیب الرحمن صاحب دار التصنیف**

**روستم ـ ضلع مردان**